# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

د ۱۳۹٤ش کال پنځمه ګڼه

(قوس - جدي)





د غور تاریخ

د کابل پېغله

د مکتب خاطرې

د مطالعې کلتور

وختونه او یادونه

خاموش استعدادونه

نړۍ وال کلتوري میراثونه/ پوهنوال رسول باوري

نقیب الله لطیفي / کلفورنیا

# جنسي ځورونه

د نړۍ په مترقي هیوادو کې د جنسي ځورونې په باب د مکتبو او پوهنتونو څخه رانیولې بیا تر دولتي او نا دولتي ادارو پورې، هره پدیده خپله واضحه تګلاره یا پالیسي لري چې د تخلف په صورت کې ورته جدي مجازات ټاکل سوي دي. د دې تر څنګ، هر وګړي ته هغه که لوی دئ که کوچنی، که نر دئ که ښځه ورښوول سوي چې د جنسي ځورونې پر خلاف باید څه وکړي.

خو له بده مرغه، په افغانستان کې دا کار نه پخوا رواج وو او نه هم اوس مهال دود لري. زموږ نجونو او هلکانو ته خپلو پلرو، مندو، وروڼو او د کورنۍ نورو غړو هیڅکله نه دي ورپام کړي او نه ئې هم ورښوولي چې که چیري معلم، د مسجد ملا، همصنفي یا ملګری مو په عضابوي، لاس دروړي، جنسي ټوکي او مسخرې دربانديي کوي، نامناسبي خبري او اشارې درته کوي تاسي به ئې په مقابل کې څه کوئ او څوک به په خبروئ. زموږ نجوني او هلکان خوارکیان د شرم، حیا او ټولنیز فشار له اسیته هر راز فشار هغه که روحي وي او یا فزیکي شکنجه زغمي ئې خو څه نه وایي.

نو ما له خان سره لازمه وګڼله چې پر دې موضوع یوه مقاله ولیکم، خو د دې موضوع پر هره مسئله باندي دقیق بحث په یوه لنډه لیکنه کې نه سي کېدای، بلکي کتابونه باید پر ولیکل سي. نو د نورو مسایلو څخه ئې صرف نظر کوم. په دغه اوسنۍ لنډه لیکنه کې صرف جنسي ځورونه او ډولونه ئې درپېژنم او د مخنیوي له پاره ئې لاري چاري وړاندي کوم.

لومړی: جنسي ځورونه هغو څرګندونو، اشارو او عمالو ته ویل کېږي چې یو کس ئې د توهینولو، ازارولو، زهیرولو او بېرولو په مقصد تر سره کوي. د جنسي ځورونې تمرکز د یوه کس پر ظاهري بڼې، بدني غړو، جنسي تمایل او یا جنسي فعالیت باندي وي. اضافه پر دې، جنسي ځورونه عبارت له نابللي جنسي (غیراخلاقي) څرګندونې، حرکت، اشارې او فزیکي تماس څخه دئ.

د دې سره سره، جنسي ځورونه ښایي شفایي (د یو چا په باب څه ویل) وي، خو ضروري نه ده چې یو څه باید هرومرو په خوله وویل سي. خو ګاهي بیا کېدای سي چې فزیکي شکل واخلي. دا نو بیا په هغه صورت کې چې یو کس کوښښ کوي بل کس د هغه د خوښې او رضایت پر خلاف مچ یا لاس وروړي.

دغه راز، د جنسي ځورونې قربانیان یوازې نجوني او ښځې نه بلکي هلکان او سړیان هم دي. ممکن پخپله نجوني نوري نجوني وځوروي او یا په ځینو واردو کې نجوني هلکان وځوروي. ښایي هلکان بیا د سړو له خوا وځورول سي. بعضي وخت، خو عموماً نه، د جنسي ځورونې مرتکب د عمر ډېروالي، سیاسي او اجتماعي نفوذ، مالي امکاناتو، تعلیمي کچې او کاري روابطو له کبله پر قرباني باندي برلاسی وي.

**د جنسي ځورونې ځیني بیلګې په دې ډول دي:**

- جنسي ټوکي، مسخرې، څرګندوني او اشارې یو چا ته او یا د یو چا په باب کول.
- د یو چا په هکله جنسي یا غیر اخلاقي افواوي او اوازې خپرول.
- په تشنابونو او عامه ځایونو کې د خلکو په باره کې غیر اخلاقي او جنسي پیغامونه لیکل.
- یو چا ته جنسي عکسونه یا غیر اخلاقي وېډیو ور ښکاره کول یا ورایمېلول.
- له یو چا څخه د هغه/هغې لڅ عکسونه غوښتل.

# کندهار







علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

دریمه دوره
د ۱۳۹۴ش کال پنځمه ګڼه (لېندۍ - مرغومی)
پرله پسې ۷۲ یمه ګڼه


**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.


مؤسس
محمدولي زلمی

سرپرست چلوونکی
مطیع الله روهیال

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
څېړندوی شېرشاه رشاد
حیات الله رفیقي
عبدالکریم طالب
فضل محمد پنهان
مطیع الله روهیال

کمپیوټر چاري
عثمان عاصي

**په هیواد او دباندي کې د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

د یادښت پر ځای:

# د مطالعې کلتور

یو وخت په کندهاري ځوانانو کې د مطالعې او کتاب لوستنې کلتور دونه عام وو، چې د ځینو مشخصو هوټلونو او کافي شاپونو پر پرتو تختونو به هم مطالعه او د ذهني روښانتیا بحثونه او بانډارونه کېدل، دغه بانډارونه او بحثونه ئې گرداو (گرداب) بلل، که څه هم د دغو بحثونو زیاته برخه به سیاسي او له مسلطو شرایطو څخه د شکوې له پاره ځانگړې سوې وه، خو تر څنگ به ئې پر اجتماعي او علمي مسائلو باندي هم بحث او مجلسونه کېدل. د دغو مجلسونو د سر په سرېیو کي د هغه مهال مشهورو کندهاري پوهانو او عالمانو ځای درلود، چې هم ئې سیاسي پوهه لرله او هم ئې علمي و ادبي پیاوړتیا ملگرې وه.

د دغو پوهانو تر څنگ به د کندهار نوو ځوانانو او د ښوونځیو د لوړو ټولگیو زده کوونکو هم برخه پکښې اخیسته. ځوانانو به نه یوازې دا چې په سیاسي برخه کي به ئې د خپلو خبیرو او پوهوو پوهانو له ویناوو او بحثونو څخه استفاده کوله، بلکي همدغه گرداوونه ول چې په نوو ځوانانو کي ئې د مطالعې او کتاب لوستنې شوق او ذوق پاله. د دغو بحثونو په زور به ئې سیاسي ځراکت او علمي ذخیره قوي کوله، د همدغو گرداوونو په مرسته به ئې خپل سیاسي لیدلوری او علمي و فرهنگي مسائل ځانته معلومول.

خو نن چې نه هماغه گرداوونه سته او نه ئې چلوونکي، نو به څه کوو؟
مطالعه او کتاب لوستنه به له کومه ځایه پیلوو؟

هماغه گرداوونه ئې مهمه او مؤثره لاره ده، تر څنگ ئې د ښوونځیو د لوړو ټولگیو زده کوونکو ته په ښوونځیو کي د مطالعې او کتاب لوستنې تشویق او ترغیب بله لاره کېدای سي. د پوهنتونو ټول محصلین دي تشویق سي چې د خپلو درسي نوټونو او کتابونو تر څنگه آزاده مطالعه وکړي، پر محصلینو دي دا کار جبري سي، تر څو د دغي لاري د زړو او شوړېدلو چپټرونو تر څنگ د آزادي مطالعې له لاري د نوو موضوعاتو سره هم مخامخ سي. نوي ځوانان او په مشخص ډول یو څه تجربه کار ځوانان دي تر بېځایه بانډارونو او ناستو ولاړو مطالعې ته مخه کړي، تر څو بیرته هماغه پخواني حالت ته ځانونه ورسوو او یو وار بیا پر دې ښار باندي د کتاب لوستونې او مطالعې زریني وزري خپرې سي.

محمدیار یار / کابل

# استاد روهیال؛ ځوان او دقیق محقق

سریزه:

استاد مطیع الله روهیال دا مهال د دقیق تحقیق، تدوین او تصنیف په میدان کي هغه ځوان نوم دئ، چي ممکن د افغانستان په کچه ئې د ده په پښتون نسل کي ساری و نه سو موندلای، آن تر ده په مشر نسل کي ئې ښایي مثال کم پیدا کړای سو؛ کېدای سي ځینو ښاغلو ته دا ادعا یوه مبالغه وایسي خو که له چا سره د افغانستان پر موجود اکاډمیک وضعیت د یوې ځغلنده کتني حوصله وي، یو وار د نني افغانستان د علومو اکاډمۍ په اصطلاح تحقیقات او د پوهنتونو د استادانو تولیدات، هغه د استاد احمد صمیم خبره د ژاولو کشول را کشول، آن په سر- سري نظر هم وګوري او د دې تر څنګ د انصاف تله ئې هم په لاس کي وي بیا نو ممکن زما په دغه دعوه کي چنداني د شک ضرورت و نه ویني اما زه به هم هڅه وکړم چي یوازي ئې په وچه دعوه سر سره ور نه ولم بلکي د یو شمېر اسنادو، عیني دلایلو او استادانو د پخو نقل قولو په را مخي ته کولو سره خپله فرضیه د اثبات پر چوکۍ کښېنوم.

د دې تر څنګ نوموړی په تېز او صفا ټایپینګ، پاک ایډیټ، اعلیترین ډیزاین او ابتکاري زړه وړونکو طرحو کي هم خورا ځیرک او د لوړ ذوق خاوند دئ.

هغه وخت چي لا زه او روهیال دواړه له پوهنتون څخه ډېر لیري وو، دغه ځوان را ته په کندهار کي منحصر بفرد ایسېدی، مګر کله چي مي د افغانستان د څېړنیز وضعیت او تدوین له حالته آګاهي تر لاسه کړه نو په دغه زړه خوړونکي بحران کي دا سړی راته د افغانستان په سطحه یو کدر ښکاره سو.

همېشه به مي ډېر زړه غوښت چي یا یوه سمه لیکنه پر وکړم، هغسي چي دی ئې واقعاً مستحق وي یا هم یوه نمانځغونډه ورته ترتیب کړم؛ څو واره مي دا سوژه له څو ملګرو سره شریکه کړه، چي هر واري هر یوه را ته ډېره مهمه و ایسوله ولي په څو علته مي تر اوسه هیڅ هم و نه کړای سوای:

یو- غونډه له دې حرصه و نه سوه چي په مختصره مي تنده نه ماتېده او د پراخي له پاره مي ئې اقتصادي وس نه وو.

دوه - له یوې خوا مي په خپل قلم کي دونه توان نه لیدی چي هغه څه چي روهیال

په ارزي زه دي ئې وليكلاى سم او له بله اړخه مي ببره دا وه چي ممكن د ده د ورتوب او اهميت په تشريح كي مي خلګ افراطي وبولي ځكه پخوا هم ده غوندي ځينو مستحقو ځوانانو ته (البته زما په نظر) د حق قايلېدو له امله له ورته كيسو سره مخ سوى وم.

درې - د فرهنګي و تحصيلي ژوند تر څنګ سياسي- اجتماعي بوختياوو دونه په مخه كړى وم چي د خپل دغه همزولي خو بې مثاله زلمي له شان سره د برابر كار فرصت مي په لاس كي نه وو.

ولي دا ليكنه؟

بالآخره مي په دوه دليله د دې ليكنې زړه وكړ:

يو - كه پر خپله طبع برابر يا له نيمګړتياوو يو مخ پاک كار ته انتظار باسو ممكن هيڅكله هم څه و نه كړو، او د افغانانو خو په مجموع كي يو سر هزار سودا ژوند دئ او زما كيسه نو بيا ځكه لا ډېره ګډه وډه ده چي په نه كار مي هم كار وي، نه مي خپل د ادبياتو ډګر سم را پاللى دئ، نه هم له سياسي- ټولنيزو مصروفيتو څخه چاره وينم او د (هر كاره، بېكاره) په فلسفه مي هم ښه سم سر خلاص دئ.

دوه - زما نېكمرغي دا وه چي تصادفاً د كابل پوهنتون د پښتو ادبياتو په ماسټرۍ پروګرام كي له خپل دغه وياړلي آشنا سره يو ځاى سوم او كله چي مي په پوهنتون كي د ده درنښت مشاهده كړ، په خاص ډول بيا ورته د افغانستان د يوازني را پاته ستر استاد سرمحقق زلمي هيوادمل خاصه توجه، نو دا دئ توكل پر خداى دا ليكنه د دوهم سمستر په نيمايي كي پر كوم.

ما ته په زړه پوري او مورال بخښونكې دا ده چي تر اوسه مي لا د محترم هيوادمل داسي يو لكچر چنداني نه يادېږي چي د خپلو تشريحاتو په سلسله كي دي ئې د روهيال د معياري كار مثال نه وي وركړي، نو دې واقعيت، مشاهداتو او اسنادو جرئت راكړ، كه پوره نه وي نو لږ تر لږه د روهيال پېژندني يوه مقدمه خو راپيل كړم، كه خداى وكړي چي يا زه همت پيدا كړم دا لړۍ پسي وغځوم او يا هم د نورو فرهنګدوستانو توجه ورته را جلب كړاى سم.

ما ته روهيال پېژندنه په دې خاطر هم ډېره مهمه ده چي كه خداى وكړي دا چاره زمونږ ځوان نسل تشويق كړي، په وجود كي ئې د ژوند ګرمي را پورته كړاى سي، په ذهن كي ئې د رڼا وړانګي منعكسي كړاى سي او په زړه كي ئې د خپل تباه سوي فرهنګ د بيا رغوني او غوړېدني له پاره د مسئوليت احساس سر را جګ كړاى سي.

**د استاد روهيال د علمي- فرهنګي كار په اړه د درنو استادانو او مشهورو محققينو نظريات:**

**۱- استاد سرمحقق زلمي هيوادمل:**

فكر كوم چي دا به پر ځاى كار وي كه د استاد روهيال د درنښت و ارزښت د ښه ثبوت له پاره د خپل ډېر درانه استاد زلمي هيوادمل ځيني هغه څرګندوني د يوه كره سند په توګه دلته ثبت كړم چي وخت پر وخت ئې د روهيال

په اړه د تدریس پر مهال کړي او ما ټکي په ټکي ریکارډ کړي دي کړي.

مخکې مي وویل چي استاد هیوادمل ئې دونه ډېر په علاقمندي سره یادوي چي یوه ورځ ئې کله د ده مثال ور کاوه، نو خپله ئې وویل:

"روهیال صاحب زما مخي ته ناست دئ، ځیني دوستان شاید فکر وکړي چي دا ولي بیا- بیا یادوي؟ منتها دا د ده حق دئ، یعني یوازنی سړی (دی) چي دا سلسله ئې د استادانو (ټینګه کړې ده) چي زه هم د دې لاري پیرو یم، دا زموږ د قندهاري استادانو، حبیبي صاحب او رشاد صاحب، بېنوا صاحب خو تحقیق ئې ډېره پېشه نه وو، هغه یو هنرمن سړی وو، یعني هغه ته زه خپله محقق نه وایم، تحقیق ئې په اماتوري شکل کړی دئ، د هغو استادانو لاره دا روهیال صاحب تعقیب کړې ده او هغه کارونه چي ئې کړي دي د دې متن شناسۍ، د تدوین پر اصولو برابر دي، خدای دي ورته همت ور کړي، چي دا کار وکړي او نور نو تحقیق حرف آخر نه دئ". (خوشحال او انسان [لکچر]، د خوشحال افکار [مضمون]، اول سمستر، ماستري پروګرام، پښتو څانګه، کابل پوهنتون، ۱۳۹۴/۵/۲۵).

د کابل پوهنتون د ماسترۍ په یوه دوره کي ۲۵ تنو محصلانو ته داخله ورکول کېږي، چي ۱۰ تنه ئې د پوهنتونو استادان او ۱۵ نور ئې د آزادي سیالۍ له لاري راځي، مګر زموږ په یوولسمه دوره کي یو شمېر داسي مستحق استادان ول چي باید په دغه کورس کي شامل سوي وای، چي یو ئې هم استاد روهیال وو.

د کندهار پوهنتون په سهمیه کي محترم استاد محب الله ترابي، چي دی هم واقعاً یو له بهترینو ځوانو کدرونو څخه دئ، راغلی وو، خو د کابل پوهنتون تنګي او ښه پوره هڅاند استاد پوهیالي محمود مرهون د ښاغلي استاد زلمي هیوادمل په قاطع حمایت سره ډېر کوښښ وکړ، بالآخره ئې د پوهنتون اداره راضي کړه چي د کورس شمېر ۳۰ تنو ته پورته کړي او په ضمن کي ئې استاد روهیال ته هم د داخلې لار خلاصوني هڅه کوله سي، اما کله چي په اداره پنځه تنه اضافه ومنل سول بیا له کندهاره د روهیال په راتګ کي جدي خنډونه ول، خو له نېکه مرغه دغه مستحق استاد هغه وو چي قبول سو.

کله چي ښاغلی روهیال صنف ته راغی، نو فکر کوم چي یو یا دوه درسونه به ځني تېر ول، د نورو ټولو کسانو تعارف خو سوی وو او روهیال صاحب هم باید د استاد هیوادمل د اصولو له مخي پېژندل سوی وای، نورو شاګردانو به خپل ځانونه خپله معرفي کول خو د استاد روهیال پېژندنه خپله استاد هیوادمل داسي وکړه:

"دا ډېر ښه کار وشو، چي روهیال صاحب دلته راغی، دی ډېر لایق ځوان دئ، ډېر کار ئې کړی دئ، ډېر کتابونه ئې چاپ کړي دي، فرضاً د مرحوم استاد بېنوا (اوسني لیکوال) دري سره ټوکه ئې په یوه ټوک کي بیا چاپ کړ، هغه کسان چي وفات شوي وو، د هغوی د مړینو تاریخونه ئې پکي ولیکل او د چا کتابونه چي چاپ شوي وو او هلته استاد نه وو ذکر کړي او هغه وخت چي دا کتاب چاپېده دا

کتابونه نه وو هغه ئې ټول ور زيات کړل، واقعاً ډېر غنيمت کار ئې کړی دئ، چي زه ور ته شاباس وايم.

د هغه نه علاوه بل ډېر مهم کار، چي ښځي ضرورت وو ور ته، هغه د (پښتانه شعراء) د پنځو جلدو (پر يوه ځای او يوه جلد کي چاپ وو)، (په) دې کي بايد تاسي ته يوه خبره وکړم چي دويم جلد (ئې) په ټول کابل کي، تر طالبانو مخکي، درې دانې وو، د افغانستان د علومو اکاډمۍ کتابخانې نه درلود، يو زما سره وو، يو له رفيع صاحب سره وو، يو له رشاد صاحب سره وو، بيا ما يو بل جلد را پيدا کړ. هغه مې بيا اکاډمۍ ته ور کړ، نو خبره په دې کي ده چي په ټول کابل کي څلور جلده وو، په هغه وختو (د مجاهدينو په وخت) کي مطبعې سوځېدلي وې، دويم جلد پښتانه شعراء په مطبعه کي سوځېدلی وو، (دلته ئې) روهيال وپوښت چي تا له کومه کړی وو؟ ده جواب ور کړ چي زما سره په خپله کتابخانه کي وو)، هغه ډېر ناياب کتاب دئ نو دا ئې ټول سره يو کړل او ټولو خلګو ته ئې په اختيار کي ور کړل او خصوصاً (په) دا جنوبي پښتونخوا او شمالي پښتونخوا کي دې کتابو ته خلګ ډېر ضرورت لري او دا کار روهيال صاحب وکړ.

د دې نه علاوه دا دئ اوس د ګل محمد د مالګير دېوان ئې چاپ کړ، چي دا يو ابتکاري کار دئ، تر اوسه پوري دا نه وو چاپ شوی.

همدغسي نور د استاد بېنوا، د استاد حبيبي، د استاد رشاد مرحوم، درې واړه دي خدای وبخښي، زموږ استادان وو او زما خو ټول داسي مخامخ استادان وو، نو د دوی ډېر آثار ئې خلګو ته وړاندي کړل او زه ده ته ډېره - ډېره مبارکي ور کوم، خدای دي زموږ فرهنګي جامعه همېش د ده له کار و زياره برخورداره لري او ده ته دي خدای همت ور کړي چي نور ډېر آثار زموږ جوامعو ته وړاندي کړي.

او اوس دلته چي دی راغی ډېر تاکيد پر وشو، خصوصاً مرهون، خدای دي ده ته خير ور کړي، ډېر تاکيد ئې وکړ، موږ به لا يو څه کړي وي خو ډېر کار مرهون وکړ، که نه دی ئې نه مانه، ډېرو خلګو مخالفت ورسره کاوه، نو ډېر ښه شو چي په خير سره راغی (استاد روهيال ته ئې مخ ور واړاوه) زه تا ته تبريک وايم او زموږ ټولو له پاره د خوشحالۍ خبره ده، چي تا غوندي ځوانان راشي او درس ووايي".

ښاغلي استاد هيوادمل يوه بله ورځ د خپل درس د تشريح په وخت کي بيا د نوموړي د اهميت په باب خپله مهرباني او مينه داسي څرګنده کړه:

"روهيال صاحب پر ما باندي ډېر ګران دئ، ځکه دی د پښتو له پاره په دې تانده ځوانۍ کي ډېره هڅه کوي او ډېر کار ئې کړی دئ، خصوصاً ډېر داسي آثار ئې بيرته را ژوندي کړل او احياء ئې کړل چي هغه واقعاً د ورکو په جمع کي وو".

دا يادوني د ملګري روهيال د استعداد او ارزښت د زبات له پاره ځکه ارزښتمني دي چي په باور سره ويلای سو چي قدرمن استاد هيوادمل دا مهال زموږ په ټولو دولتي لوړو تحصيلي و اکاډميکو مؤسساتو کي يوازنی بااحساس، بامسئوليت او مسلم استاد دئ، د نوموړي دا عالمانه خاصيت ډېرو ته مالوم دئ

چي دی مبالغه نه کوي، خبره ئې مدلله او د منطق و سند پر بنسټ استواره وي، موږ ئې هم وينو، چي په صنف کي د ټولي دوستانه و صميمانه فضاء، سره- سره ئې هره توضيح و تشريح، هره فيصله او هره نظريه پر علمي معيارونو ولاړه وي، نه د چا په صفت کي او نه هم د کومي مسئلې په وضاحت کي له زيات و کمه کار اخلي، بلکي په هغه لحظه کي چي څه د ده په ذهن کي سم وي هماغسي ئې اظهار کوي.

زما خو تل دا دعوه ده چي موږ په ټوله ماسټري او دوکتورا پروګرام، کابل پوهنتون او ټولو دولتي پوهنتونو کي د استاد په واقعي مانا همدا يو استاد لرو چي پر خپل مسلک باندي حيرانوونکی حاکميت لري او هم ور سره کامل د مسؤليت احساس؛ دا يوه بېله سوژه ده چي يو بل وخت به ئې د تفصيلي ليکني پور ادا کوم.

په ټولګي کي د روهيال په باب يوه جالبه نقطه دا هم ده چي اوس د ماسټرۍ په دوهم سمسټر کي استاد هيوادمل را ته متنپوهنه تدريسوي خو د استاد روهيال ټول هغه د تحقيق و تدوين، تعليق و تحشيو، ترتيب و سمون او لغتنامو و سريزو ليکلو کار، چي له کمي و کيفي پلوه ئې يادونه وسوه، له ټولو هغو معيارو سره سم دي چي اوس ئې استاد را ښيي او د نوموړي له ستندرډ کار څخه خورا راضي ايسي، ځکه ئې همېشه د ده صفت په خوله کي وي.

**۲- څېړندوی انجينير شېرشاه رشاد:**

په کندهار پوهنتون کي د مرحوم پوهاند اکاډميسين علامه عبدالشکور رشاد زوی، څېړندوی استاد انجينير شېرشاه رشاد هم د تدريس د ميتود، چمتووالي او مسئوليت د احساس له مخي، کټ- مټ استاد هيوادمل ته سوی دئ؛ نوموړی هم د ګل محمد مالګيري د دېوان په يادښت کي د استاد روهيال په اړه، په زړه پوري خبري لري او دلته ئې غونډ اقتباس زما ادعا ته پوره وزن بخښلای سي:

«د پښتو متونو پلټنه، موندنه، څېړنه او بيا د هغو د څېړنيز (انتقادي) متن چاپ ته سپارنه، هغه تاريخي او ملي وجيبه ده، چي د هر پښتانه او هر ادبپاله انسان په فرايضو کي راځي.

له بده مرغه په موږ کي د مادياتو حُب او مينه دوني غالبه سوې ده، چي کله نا کله مو تر څو خوشمږو پوري اولس، هيواد، ژبه، دين، فرهنګ او هرڅه را څخه هېر سي. ډېر داسي پېښ سوي دي او پېښېږي، چي د هيواد لرغوني هستۍ مو د پرديو پر بازار ليلامېږي.

خو، د دې خودفروشۍ او بېګانه پرستۍ پر څنګ، ځيني داسي انسانان هم لرو، چي د ژوند هر څه، حتی د خپلو اولادو د خولې ګوله ئې لا د دې اولس له پاره، د خپلي ژبي له پاره، د خپلي عقيدې له پاره سپمولې (نه) ده، شپه او ورځ د رونې راتلونکي له پاره په ستړيا او ستومانۍ کي ولاړ دي.

پښتو ژبه، ادب او د پښتنو فرهنګ اوږد تاريخ لري، د لاس ته راغلو او اوس موجودو

آثارو خونديتوب د خپل تاريخ، ژبې او ادب ژوندي ساتل باید وګڼل سي.

د پښتو متونو د پلټني، موندني، څېړني او چاپ له پاره ئې ځينو ختيځ پېژندونکو هم برخه اخيستې ده، چې اکاډيمسين ډورن (۱۸۰۵– ۱۸۸۱م)، راورټي، ببليو، هيوز، ډارمسټټر، بدلف او داسي نور، د خاصي يادوني وړ دي.

له علمي اساساتو سره سم متن څېړنه په هيواد کي د دې پېړۍ په دوهمه لسيزه کي، د لوی استاد علامه حبيبي (۱۲۸۹– ۱۳۶۳ هـ ل) پر لاس په کندهار کي او په بله پښتني حوزه پېښور کي د تنګي د مولوي احمد (۱۲۶۱– ۱۳۰۰ هـ س) پر لاس را پيل سوې ده.

له نېکه مرغه اوس بيا په کندهار کي د يو ځوان او مبتکر ليکوال او څېړونکي ښاغلي مطيع الله روهيال په تلاښ، د متن څېړني يوه نوې لړۍ را پيل کېږي، چي د دې ځو اړخيز شخصيت د ژوند يو بل بُعد ښيي. دا ابتکار واقعاً د ډېري ستايني او قدرداني وړ دئ. ستر ځښتن دي د دې مستعد او مبتکر شخصيت استعداد، هڅه او هاند نور هم تاند او غښتلی لري». (څېړندوی شېرشاه رشاد، د متن خپروني نوې لړۍ (يادښت)، د ګل محمد مالګيري ديوان، سريزه، سمون او لغتنامه (مطيع الله روهيال)، مخونه: ۵– ۶، خپروونکی: علامه رشاد خپرندويه ټولنه– کندهار، چاپکال: ۱۳۹۳ ش).

**۳- استاد محمد معصوم هوتک:**

د دغه ځوان محقق د علمي کار د يوه بل اړخ (کتابښودني) په باب زموږ د يوه بل مشر دقيق محقق محترم محمد معصوم هوتک يادښت هم خورا ارزښتمن بر ښني:

«ګران روهيال دا پلا يوه بل ارزښتناک کار ته لاس اچولی دئ او هغه د ارواښاد عبدالرؤف بېنوا (۱۹۱۳– ۱۹۸۴ ع) د آثارو کتابښود ترتيبول دي، برکت دې مل وي.

کتابښودنه او کتابپوهنه چي په لويديځو ژبو کي ئې بيبليوګرافي (bibliography) او بيبليولوجي (bibliology) بولي په نننۍ علمي نړۍ کي ډېر اهميت لري. بيبليوګرافی ته پوهان د يو ډيسيپلين په سترګه ګوري او د ډيسيپلين يوه معنا د مطالعې پر يوه ټاکلې اورشو باندي پاملرنه کول (focus) دي. د بيبليوګرافۍ او بيبليولوجۍ د کار اورشو (کتاب) دئ. بيبليوګرافي د کتاب پر شکلياتو رغېږي او بيبليولوجي ئې منځپانګه (محتوا) تر څېړني لاندي نيسي. د پوهانو د ليکلو آثارو کتابښودونه ترتيبول يوه اکاډميکه اړتيا ده او د دغه شان کتابښودو ليکل په راتلونکي کي د نورو محققينو د څېړني له کار سره ډېره مرسته کوي.

ګران روهيال په دغه حاضر کتابښود کي هڅه کړې ده چي په نورو چاپ سوو کتابو کي د بېنوا د آثارو په باب خپاره سوي مطالب تر کره کتني لاندي ونيسي، د دغو مطالبو نيمګړي او خوږ (تت) ځايونه ئې بشپړ او روښانه کاندي. دی د خپلو امکاناتو په محدوده کي د دغه کار تر عهدې سم وتلی

دئ. زه د ده دغه کار ستايم او په راتلونکي کي ور ته د نورو سترو ادبي برياليتوبونو توفيق د پاک خدای له درباره غواړم».

(محمد معصوم هوتک، د ښېنوا کتابښود (يادښت)، ليکوال: مطيع الله روهيال، مخ: ۹، خپروونکی: علامه رشاد خپرندويه ټولنه - کندهار، چاپکال: ۱۳۹۳ ش)

ښاغلی استاد هوتک همدارنګه د روهيال له خوا د پښتانه شعراء د بيا احياء د نوي چاپ په يادښت کي، چي مخکي ئې استاد هيوادمل هم په خورا درښت سره د ارزښت يادونه وکړه، غنيمت لاربښوونه و يادونه لري:

«د تذکرو کتابونه د شاعرانو، ليکوالو، عارفانو او فقهاوو د نومونو په خوندي کولو کي خورا ډېر اهميت لري او د ادبي تاريخ ليکني عمده منابع کېدلای سي. د تذکره ليکني دوديز روش د شاعرانو د آثارو په باب د مبالغې تر اندازې پوري پر توصيف او ستاينو باندي ولاړ وو. د اوسنۍ زمانې غوښتنه دا ده چي پر دغه روش باندي نوې کتنه وسي او د شاعرانو او ليکوالو آثار د کره کتني (نقد) په محک وڅېړل سي. د توصيف او ستاينو ليکني (زما د ليکنو په ګډون) اوس يکنواخته سوي دي. څوانو څېړونکو ته بويه چي د خپلو مشرانو دغه عنعنوي بهير زموږ د زمانې له ايجاباتو سره سم د علمي نقد او کره کتني د اصولو پر بنسټ باندي (update) کړي او پسي وئې پالي. زه د دې خبري يادونه هم لازمه بولم چي زموږ ځيني څېړونکي د نوو ايجاباتو په پلمه زموږ ټول پخواني آثار او څېړني بې اهميته ګڼي او نفي کوي ئې. دا روش د خپل ادب او ادبي تاريخ د مانۍ نړولو پرته بل نوم درلودلای نه سي. له دغه راز چلند څخه هم پرهېز بويه.

ښاغلي مطيع الله روهيال چي د پښتانه شعراء د لړۍ بيا چاپولو ته لستوني رانغښتي دي، د ستايني وړ دئ. ده د خپل وس او امکاناتو په اندازه او د موجودو مدارکو په مرسته د پخوانيو چاپونو نيمګړتياوي سمي کړي دي. زه ئې دغه کار تقديروم او له پاک خدايه ور ته توفيق غواړم چي د خپلو مشرانو په لاس بله سوې علمي و ادبي شمعه مړه کېدو ته پرې نه ږدي. لوی څښتن دې مل، توفيق دې رفيق او پر همت و قلم دې برکت وي».

(محمد معصوم هوتک، پښتانه شعراء (بشپړ متن)/يادښت، ترتيب، تصحيح او زياتوني: مطيع الله روهيال، مخونه: ۵- ۶، خپروونکی: علامه رشاد خپرندويه ټولنه- کندهار (دوهم چاپ)، چاپکال: ۱۳۹۱ ش - ۲۰۱۲ع)

د استاد روهيال د علمي- ادبي هلو- ځلو د يوې بلي ساحې (راټولوني) په باب هم استاد هوتک (د حبيبي شعري کليات) په يادښت کي د دغسي کار پر ارزښت خبري و لارښووني را ته کوي، هم مو ئې سختۍ ته متوجه کوي او هم ګران روهيال لا را باندي ګرانوي:

«ګران روهيال د دغه کليات مواد د اتو. نهو کالو په جرېان کي له بېلا بېلو موقوتو او غير موقوتو خپروونو څخه راغونډ کړي دي. په دې موادو کی ځيني ئې پخوا د مستقلو رسالو په

توگه چاپ سوي دي، خو ښایسته زیاته برخه ئې هغه متفرق اشعار دي چي د تېرو څه د پاسه اتیا کالو په جریان کي په هیواد کی دننه او تر هیواد دباندي خپاره سوي ول. د دغو خورو ورو موادو موندل او راغونډول څه اسانه خبره نه ده او څېړونکي د دغه کار د دروندوالي د بوج احساس کولای سي.

روهیال تر دې وړاندی هم د علامه حبیبي د ادبي، ژبنیو، تاریخي او نورو علمي څېړنو یوه لړۍ را پیل کړې وه چي هري برخي ته ئې د (شل مقالې) نوم ور کړی دئ... دغه راز ئې د اروابښاد استاد بېنوا نثري ټوټې، د اوسني لیکوال ټول ټوکونه او د پښتانه شعراء ټول ټوکونه په یوه مجلد کي د نوو زیاتوونو سره بې له کومي مادي تمي او امتیازه خپاره کړی دي. پر همت دې برکت وي. په نورو هیوادو کي دغه شان کارونه د اکاډمیو او علمي مرکزو له خوا په ګروپي ډول سر ته رسېږي.

د لویو استادانو د خپرو سوو مقالو او اشعارو را غونډول او سره یو ځای کول له محققینو سره مرسته کوي چي د خپلو څېړنو پر وخت مجبور نه سي چي د یوې لیکني د موندلو له پاره د بېلابېلو کتابتونو د رواقونو او الماریو دوړي پر ځان ومني. زما یقین دئ چي که یو وخت د هیواد په پوهنتونو کي حبیبي پوهنه د یوه مضمون په توګه تدریس کېدله، د روهیال دغه خپاره سوي آثار به هم له استادانو او هم له محصلینو سره ښه پوره مرسته وکاندي. ده او نورو زلمیو ته زما سپارښتنه دا ده چي د دغه راز کلیاتو د ترتیبولو پر وخت دي له زیات دقت څخه کار واخلي چي نه ګانه د موادو اصلي بڼه د چاپي او طباعتي تېروتنو ښکار نه سي.

زه ګران روهیال ته د دغه کلیات د برابرولو او خپرولو له اسیته مبارکي وایم او له پاک خدایه ور ته د نورو سترو علمي کارو د تر سره کولو توفیق غواړم».

(محمد معصوم هوتک، د حبیبي شعري کلیات (یادښت)، ټولونه، ترتیب او سمون: مطیع الله روهیال، مخونه: ۳– ۴، خپرووونکي: علامه رشاد خپرندویه ټولنه– کندهار، چاپکال: ۱۳۹۳ ش)

**۳ – ډاکتر عبدالرؤف رفیقي:**

زموږ د دغه زلمي مدون په اړه، د تحقیق د یوه ځوان ډاکتر عبدالرؤف رفیقي نظر هم زما د مقالې د سنګینۍ له پاره لاس را کوي:

«د کندهار و لرغوني سیمي ته یو شمېر ویاړونه پروردګار وربخښلي دي، دلته که د توري څښتنانو و ملت ته د پردیو د یرغلونو څخه نجات ور کړی دئ نو همدغي خاوري داسي یو شمېر څېړونکي را پیدا کړي دي چي موږ ئې نه یواځي د پښتو ادبیاتو په تاریخ کي د ویاړ شمله ګڼو بلکي په نړۍ والو علمي رجالو کي هم ښه د خرپ سیالي په کولای شو د دغه رجالو د اوږده بهیر د قطار په پای کي ځوان او خواریکښ مطیع الله روهیال هم درولای شو چي ماشاالله د بدو سترګو دي په امان وي، په بېخي لږ وخت کي ئې ډېر لوړ او درانه، علمي او څېړنیز خدمتونه تر سره کړي دي. د بېنوا صاحب د اوسني لیکوال د درو سرو ټوکونو پر یوه ځای چاپېده او پر هغو باندي تر اوسه

وخته سوي اضافې راوړل د روهيال غټه توره ده. بل ئې لا همت دا وکړ چې پښتانه شعراء ... شـ سره ټوکه سره را یوځای کړ او پر هغه نې څېړنه او لمن ليكونه وكښه، چاپ ئې او د پښتو ادب تاريخ ته ئې وسپارل.

د کندهار د نوي کهول په ځوانانو څېړونکو کي چي چا ته سترګي ور اوړي هغه هم دغه روهیال دئ چي خدای دي صحت او سلامتي ورکړي چي د پښتو څېړونو په تاج کي ډول ډول غمي وټومبي.

روهيال په متن څېړنه کي هم پياوړی لاس لري. د جديد توخي متن ئې په خورا همت او مېړانه مرتب کړی دئ خوندوره سريزه ئې پر کښلې ده. د جديد توخي د زوکړي او مړيني نېټې، ټاټوبي، ادبي صنائع، شعري لار، دېوان، د دېوان املايي ځانګړتياوي او متن باندي ئې په زړه پوري څېړنه کړې ده.

د پښتو اکاډمي کوټي د نړۍ وال سيمنار (پښتو ژبه، جهانيت، ستونزي او امکانات، ۱۲ تر۱۴ ستمبر ۲۰۱۵) په وياړ د چاپېدونکو کتابونو کميسون هم د روهيال د دغه اثر د چاپولو منظوري ورکړه او موږ له خوښيو په کاليو کي نه ځاېږو چي د پښتو ادبياتو د يوه لرغوني ناچاپه دېوان متن سره د يوه ځيرک څېړونکي د څېړنو د پښتو ادب مينانو ته سپارو».

(ډاکټر عبدالرؤف رفيقي (يادښت)، د جديد توخي دېوان، سريزه، سمون او لغتنامه: مطيع الله روهيال، مخونه: د– ه، خورونکی: پښتو اکېډمۍ بلوچستان کوټه، چاپکال: ۲۰۱۵م)

اوس نو له دغو معتبرو او مستندو يادوونو څخه پوهېدلای سو چي ښاغلی روهيال څنګه يو بااحساس وطندوست او فرهنګي استعداد او ځوان اکاډميک ځواک دئ!

**د استاد روهيال الهام بخښونکي ژوندليک:**

**ټاټوبی او کورنۍ:**

د مطيع الله روهيال پلرنی کور د کندهار د ښکارپر بازار په ساګزو خړه- پړه کوڅه کي دئ.

د افغانستان، په تېره بيا کندهار پر احمدشاهي سپېرو، اوړدو او کږو- وږو کوڅو او تورو سوپانو به ښځي د چا يقين را نه سي چي يو وخت دي دلته د پوهي، فکر او فرهنګ داسي روښاني کورنۍ مېشتي وي او اوس ئې لا هم د نژدې څلوېښتو کالو جهنمي جنګ و جهالت وروسته مثبت تاثيرات پاته دي چي روښا ئې د تاريخ له ذهنه په هيڅ ګون د ورک کېدو يا خوږېدو نه ده او ما ته خو داسي ايسي لکه زمانه چي يو وار بيا خپل کار کوي، زموږ نوي نسل ته د خپل تاريخي برم د بيا احياء حکم کوي او د تاريخ له کوټې څخه د علم د روښاګانو شلاخي په لاس ورکوي چي د جهل، ارتجاع، جمود او تحجر توري بلاوي په وشړي.

له دغو کوڅو او منورو کورنيو څخه يوه هم په ساګزو کوڅه کي د استاد روهيال کورنۍ ده چي د استاد محمد معصوم هوتک په قلم معرفي ئې خپل خاص کيف لري:

«د ساګزو کوڅه د ښکارپر بازار په ختيځه راسته کي د يحيى خان د کوڅې د فرعي خولې

جنوب لور ته پرته وه او پای ئې د ګارپانو کوڅې ته رسېدی. د دې کوڅې په سر کې د هندوانو دوه کوره واقع وو او ور پسې د کندهار د يوه لوی عالم ملا عبدالله اخند ساګزي مسجد او کورونه ودان وو. ملا عبدالله ساګزي په همدغه مسجد کې شاګردانو ته تدريس کاوه.

په دې کوڅه کې بله علمي کورنۍ د ملا محمد حسن اخند ساګزي کورنۍ وه. نوموړی په اماني عصر کې د معارفو په ژوندي کولو کې د مولوي صالح محمد هوتک له ډېرو نږدې همکارانو څخه وو او د مکتب تجار سرمعلم وو. د کندهار د ښاروالۍ د مامور امان الله مرحوم او د عالي دارالمعلمين د پخواني استاد انجنير محمد حسين کورنۍ هم د دې کوڅې اوسېدونکي وو.

ساګزی ملا عبدالله اخوندزاده د عبدالرؤف اخندزاده زوی د محمد عمر اخندزاده لمسی دئ. د خپل وخت مشهور عالم وو. ما اورېدلي وه چې له مولوي عبدالواسع اخندزاده شهيد سره ئې ډېر ښه تعلقات درلودل، دغه راز ئې د کندهار د اهل تشيع له ستر عالم شيخ محمد طاهر کندهاري سره دوستانه اړيکي لرلې.

د ملا عبدالله اخوندزاده زوی عبدالقدوس اخوندزاده (۱۳۸۴ ش وفات) هم ډېر څيرک او پر مروجو علومو مسلط ملا او د قرآن مجيد حافظ وو.

د ملا عبدالله اخوندزاده ورور عبدالحبيب اخوندزاده ساګزی هم له لويو عالمانو څخه وو.

د کندهار په اوسنيو ليکوالو کې زيارکښ او مستعد ځوان ګران مطيع الله روهيال د دغې کورنۍ غړی او د ارواښاد عبدالقدوس اخوندزاده زوی دئ».

(محمد معصوم هوتک، احمدشاهي کندهار (اول او دوهم ټوک)، مخونه: ۳۵- ۳۶، خپرندوی: علامه رشاد خپرندويه ټولنه- کندهار، چاپکال: ۱۳۸۶ ش- ۲۰۰۸ ع)

پر عبدالقدوس اخوندزاده دې الله پاک ورحميږي، له ښکه مرغه زما د لومړني ديني تعليم مهربان استاد وو چې خوږې خاطرې ئې راسره خوندي دي.

په ښکارپور بازار کې د عبدالرب اخندزاده د جامع ځنګ ته د نوي سړک په خوله کې زما د مور د ماما د زوی حاجي عبدالعزيز اخندزاده (موږ نانی ماما باله) د بايسکل سازۍ کوکه وه، قدوس اخندزاده به پر دغه کوکه کښېنستی، د دوی بيا په خپلو کې د اخوندزاده توب او ساګزيتوب د مشترکي وجهي او له پلار و نيکه څخه د اوږدې همسايګۍ له امله اړيکي د ښځي نږدې دوستۍ تر حده رسېدلي ول.

دغه وخت پر کندهار او ټول افغانستان د توپکيانو د وحشت تور توپان چلېدی؛ که ووايم چې د ځنګله قانون حاکم وو ځکه به غلطه وي چې په ځنګله کې خو هم د حيواناتو تر منځ يوه سلسله ځنګلي اصول خاماخا وي مګر په کندهار کې د مجاهدينو وحشت د ځنګله ريکارډ هم مات کړی وو، په دغسي يوه بحران کې مي نانی ماما پر محترم عبدالقدوس اخندزاده باندي د شاګردۍ

سبب سو؛ پر همدې کوکه به مي ځانښت مهال سبق پر وایه؛ کله چي د طالبانو داسلامي امارت له برکته پر ټاني ماما د بایسکل سازی کار هم ودرېدی، بیا به د سبقه له پاره په ساګزو کوڅه کي ماخیګر تر لمانځه وروسته هغه ماجت ته ور تلم چي امامت ئې د ده پر غاړه وو.

هغه وخت مي روهیال نه پېژندی، غالباً په ۲۰۰۲ کال کي هغه وخت ورسره اشنا سوم چي د ښکلا مجلې اوله ګڼه تازه چاپ سوې وه او دی له مرحوم عبدالقدیم پتیال سره د کندهار ښار په هرات دروازه کي په خاد کوڅه کي بېنوا فرهنګي ټولنې ته راغی، دی هغه مهال په اطلاعات و کلتور ریاست کي کمپیوټر کار وو چي شهید عبدالمجید بابی ئې رئیس وو او په دې بیا هله خبر سوم چي نوموړی د عبدالقدوس اخندزاده زوی دی چي زه د هغه مرحوم تر جنازه لاندي د صوفي صاحب هدیرې ته روان وم.

مرحوم اخوندزاده صاحب د علم میراث له خپل پلار، عبدالله اخوندزاده ساګزي، څخه وړی وو چي د خپل وخت استاد کل وو. نوموړی په ۱۳۲۷ ش کال د وبا په مرض وفات سو.

مطیع الله د مور و پلار درېیم او کشر زوی دئ، په دوو نورو کي، مشر ئې عبدالاله، چي تر لسمه ئې مکتب ویلی، مخکي میرزا او اوس شخصي کار کوي او منځوی ئې احمدالله دئ چي مدرسه ئې ویلې او اوس د کندهار د اطلاعات و فرهنګ د موزیم مسئول دئ.

عبدالقدوس اخوند زاده به ویل چي مطیع الله د ۱۳٦۰ ش کال په اوایلو کي هغه وخت زو کړی چي دوی له ساګزو کوڅې څخه نوي ښار ته کډه سوي ول خو تر دې ها خوائې د ډېرو نورو پښتنو غوندي دقیق تاریخ نه وو ور مالوم.

دوه- درې کاله وروسته دوی بېرته خپلې آبایي کوڅې ته را بار سول او د طالبانو په تسلط کي ئې په نوي ښار کي کور واخیست او دا وار نو ښه سم ورکډه سول.

**زدکړه:**

روهیال ته د خپلي زوکړې په شکل مکتب ته د تللو ورځ هم نه ده په یاد، خو د ده په خپله وینا چي د ښوونځي د تنګ و تروش ماحول تصویر ئې تر ننه په ذهن کي نقش دئ.

دا هم د ده خبره ده چي یوه ورځ سهار ئې مشر ورور په ښکارپر بازار کي د هندوانو په یوه اوږده او تور سوپ ننه ایست، د سوپ په منځ کي په یوه بله دروازه ور ننوتل، دوه کوچني سرایونه یو په بل پسې مخ ته ورغلل؛ ورور ئې د دوهم سرای یوې خوني ته ور پورته کړ، ول دا د محمد هوتک ښوونځي اداره ده، د ښوونځي مدیر ښاغلی محمدشاه خان نومېدی، خو دا چي هغه به پرېتونه و رېره دواړه خریل نو ځکه په خریلي معلم صاحب مشهور وو. د کندهار خلک په دې باب خورا پساتیان دي او پر یو بل باندي عجایب دا ډول ریشخندي نومان ایږدي.

مدیر صاحب د ده او هم ئې د پلار و نیکه نومونه یو په بل پسې ولیکل، تر څنګ ئې د ده یو عکس هم ور سره و موښلاوه.

تر دریم ټولګي وروسته په ۱۳۶۹ش کال د هغه مهال البیروني او اوسنۍ ظاهرشاهي لیسې ته تبدیل سو، څلرم او پنځم ټولګي ئې دلته ووایه.

په پنځم ټولګي کې وو چې په (۱۳۷۱ ش) کې د اسلام ټیکه داران یانې مجاهدین مبارکان د جبر و جهالت د تور تباه کوونکي توپان په څېر پر افغانستان رامات سول، د روهیال په ژبه چې د خپلو ټیکو په برکت ئې نه یوازې د ډاکټر نجیب دولت له منځه یووړ بلکې دی ئې هم د ښوونځي پر ځای په هرات بازار کې د یوه بزاز په شاګردي ونازاوه.

زه هم تصادفاً پر کندهار د مجاهدینو د جنون و جهالت د تسلط په وخت کې د همدې لیسې د اووم شاګرد وم خو روهیال مې نه پېژاند اما دا مې ښه په یاد دي چې مجاهدینو له البیروني لیسې څخه څنګه تعلیم و تربیه، پوهه و فرهنګ، کتاب و قلم، معلم و شاګرد، معرفت و شرافت، افغانیت و اسلامیت، آدمیت و کرامت او اداره و مدیریت جارو کول؛ د دغې مشهورې لیسې په ټولګیو کې د ممتازو شاګردانو پر ځای د قومندان عبدالحکیم جان جنګي زبر سپي ساتل کېدل، په لویه و شاهي اداره کې به د مدیر د شاندار مېز پر ځای د چرسو ښه نامي چلم پروت وو او دا نو د جهاد تر ټولو بارز فرهنګ او برکت وو.

دا خو د مجاهدینو د وحشت و بربریت یو تر ټولو کمکی مثال وو، تر دې ها خوا نو ترخه و پاچهي، کوځه و توپکسالاري او ګام و بې ناموسي وه، لوټل، نیول، تړل، وهل، بې عزته کول، وژل، سوځول، نړول او یو مخ هرڅه بربادول د جهادیانو شپه و ورځ عبادت او فرض عین وظایف ول.

نه پوهېږم چې مرحوم داؤد بارک مدیر د توپکیزم په آخر کال دغه لیسه په کوم منطق او کوم کرامت و امکاناتو د عبدالحکیم جان له سپیو او سرپو څخه تخلیه او زما په شمول یو څو محدودو شاګردانو بیا ور مخه کړه؛ د قسم له پاره په غونډه لیسه کې یوه چوکۍ نه وه چې معلم پر کښېنستلی وای، مجاهدینو هر څه په صنفو کې سوځلي ول، اداره او ټولګي داؤد بارک او ښوونکو خپله جارو کړي ول خو د صنفو فرش په جارو د پاکېدو نه وو نو د کښېنستو هم نه وو، هر صنف دوه- دوه کلکینان درلودل، موږ به په کړکیو کې کښېنستو څکه پر مخکه مو کالي تورېدل.

د علم او تمدن په وړاندې تر توپکیزم وروسته د طالبیزم هم ورته دردوونکی داستان دئ؛ د تعلیم او تربیې په برخه کې د مجاهدینو او طالبانو تر منځ یوازې شکلي توپیر وو نور ئې نو ماهیت کټ- مټ یو رنګ وو.

طالبانو په کندهار کې (البیروني او میرویس) دوې لیسې پر دنیاوالو د بهانې درولو له پاره، چې ګواکې دوی د تعلیم مخالف نه دي، په نمایشي توګه پرانیستي وې، دغه خبره ما ته مخامخ د دوی یوه مهم چارواکي هغه وخت کړې وه خو د توپکیانو او بیا طالبانو د استبداد په وخت کې د داؤد بارک له خوا د

البیروني لېسي فعال ساتل د هغه وخت يوه بېساري غټه کارنامه وه؛ ښه مي ياد دي، يوه ورځ چي نوموړي په يوه خره غيچچي زموږ سرونه په زوره را غيچچي کول نو ډېر د زړه له درده ئې دا خبره وکړه: «د دا هر يوه ور ښتنان چي ور پرې کوم لکه په دا غيچچي چي خپله .... ځيرم خو څه وکم، که داسي و نه کړم نو دغه حال هم راباندي دروي، ګوزاره راسره وکئ».

د هغه وخت دا بله خاطره مي هم د ثبتولو ده:

په يوولسم کي وم چي يوه ورځ د طالبانو د لوړو زدکړو (وزير وو که ئې معين؟) حمدالله نعماني البیروني لېسي ته راغی، موږ ئې انګړ ته ور ته را وايستو چي نوموړی خپله عالمانه وينا راته وفرمايي او شاګردان د وطن د نوي نسل په صفت خپلو مسؤليتو ته متوجه کړي، په سپېره مڼ کي ئې ور ته کښېنولو.

نوموړی ښه په غوښه پټ، ماشي ترخځي کالي اغوستي، تور پاچ ترلی، مخ ته مو ودرېد، مغزی ئې کوږ، سترګي پټي او خوله ئې خلاصه کړه او زموږ د ذهنو لمني ئې له داسي مرغلرو را ډکي کړې:

«انسان دونه ناکامه دئ چي د ساينس او پرمختګ د غټو دعوو سره- سره تر اوسه پر دې نه دئ قادر سوی چي يوازي ماده وپېژني چي دا ماده اوس څه شی ده؟

هغه انجينري چي د يوې مرغۍ زده ده او په څنګه طريفه خپله خالګۍ جوړوي، د انسان نه ده زده.

په دنيا کي يو انسان دوولس کاله مکتب وايي، شپږ کاله پوهنتون وايي آخر انجينر ځني جوړيږي خو زه مو د يوه معمار سره شاګردوم، په يوه کال کي تر هر ډول انجينر ښه معمار در څخه جوړيږي نو د دا دونه وخت ضايع کېدو ته څه ضرورت دئ؟

او...».

له دې نسبتاً تفصيلي بيانه مي مطلب په دې پوهېدنه ده چي روهيال د څه ډول شرايطو زېږنده ځوان دئ او دی څنګه د مړه ماهي غوندي د اوبو جريان نه دئ وړی بلکي د سيند په مخالف جهت کي ئې حرکت کړی او د يوه تاريخي جهالت په مسير کي ئې د معرفت لار وهلې ده.

د ده په ژبه، څنګه چي په يوه اخونزاده خپله کورنۍ کي زوکړی او د اخونزاده توب بوی وهلی وو نو له ١٣٧١ څخه تر ١٣٨٠ ش کال پوري ئې په شخصي ډول، د هغه مهال په امام ابو حنيفه مدرسه کي يو څه ديني زدکړي هم وکړې؛ څنګه چي ښه ذهين شاګرد وو نو د ملا په ملايي او ډېر ځله پېچلو خبرو ئې ښه سم سر خلاصېدی او دی خپله زياتوي چي د هغې دورې د زدکړو زور دئ چي نن پر اوداسه و لمانځه سربېره په ځينو نورو ديني موضوعاتو هم پوهېږي بلکي زه خو وايم چي ډېر ښه پوهيږي او دا د افغانستان د زيات شمېر مشهورو عالمانو، محققينو او ليکوالو په باب جالبه موضوع ده چي د دوی د سمندري پوهي مانۍ د ديني زدکړو پر بنسټ ودانه سوې ده؛ د افغانستان د مشروطيت غورځنګ اکثرو روشنفکرو غړو او د پښتو ادبياتو د معاصري

دورې د مؤسسينو له نومونو سره خو سم دم (مولوي) دروند نوم ليکلی لکه مولوي عبدالرؤف خاکي، مولوي عبدالرب، مولوي عبدالواسع، مولوي صالح محمد هوتک او نور. همدارنگه د روښانتيا و ويښتيا پړاوونو د اکثرو ليکوالو او سياسي مبارزينو د علم پيل هم له ديني زدکړو څخه سوی او وروسته بيا د ماډرني و سيستماتيکي پوهې روښان ډگر ته را وتلي دي لکه پنځه ستوري، کانديد اکاډميسين محمد انور نوميالی، پوهاند اکاډميسين محمد رحيم الهام، سر محقق عبدالله بختانی، پوهاند ډاکتر مجاور احمد زيار، کانديد اکاډميسين سليمان لايق او لسگونه نور درانه پوهان.

دې حقيقت ته په کتو سره نو د افغاني فرهنگ له پاره له روهيال څخه هم د لا زياتو افتخاراتو، پر ځای توقع کېدای سي.

تر لس کلن خنډ وروسته په ۱۳۸۱ ش کال د محمد هوتک شپې لېسې ته ولاړ، اتم ټولگی ئې لا پای ته نه وو رسولی چې د ځينو ستونزو په وجه مکتب ور څخه پاته خو د فرهنگي کار له لارې هيڅکله منحرف نه سو؛ دا هم د ده هوډمنه وينا ده چې د بخت نه ياری، او د هيواد کړکېچنو حالاتو ئې د زدکړو تناو څو واره شلولی خو د خپلې سرزورۍ له وجې ئې دغه شلېدلی تناو بيا سره غوټه کړی، هدف ته د رسېدو له پاره ئې کوښښ کړی او ماشاءالله په خپل دغه تلاښ کې ښه بريالی و گړندی مخ ته روان دئ او د هغه ټاکلي هدف د غره سر ته رسېدونکی دئ چې يوازې د ده نه بلکې زموږ ټولو او ټولو وطنوالو هدف دئ.

روهيال وايي چې خپل اخوندزاده توب په ۱۳۸۸ ش کال د معارف رياست د ملايانو په قطار کې د دوولسم ټولگي معادل ازمويني ته کښېناوه، په دغه امتحان کې ئې تر ډېرو اصلي ملايانو ښې نومرې يوړې، سند ئې تر لاسه کړ او بيا نو په ۱۳۸۸ش کال په کانکور کې شامل سو او وايي چې بخت ئې په لومړي ځل د خوښې خيال وساته او د ښوونې و روزنې پوهنځي ته ئې کامياب کړ، زياتوي چې د ۱۳۸۹ ش کال د سنبلې په نسبتاً مناسبه هوا کې د ښوونې و روزنې پوهنځي د پښتو څانگې په لومړي صنف ور ننووت او د ۱۳۹۳ ش کال د سرطان په زموخته هوا کې، البته چې په ښه کاميابۍ ځني را وووت.

دی د خپل څلور کلن زيار ثمر يو کاغذ بولي چې پر يوه خوا ئې د ده عکس موښتی او پر بله خوا ئې دوې درې ټاپې او امضاوې وې؛ د همدې کاغذ په زور ئې په کابل کې د ادبياتو پوهنځي د استادانو په ازموينه کې گډون وکړ او کندهار پوهنتون ته بريالی سو بلکې زه خو وايم چې کندهار پوهنتون خوشبخت وو او پر دې بريالی سو چې روهيال غوندي استاد ئې په برخه ورسېد؛ دا د ده خبره ده، چې اوس هغه زړې بابولالي په نوي سُر کې تر نوو ځوانانو پوري رسوي مگر لويه اميدواري دا ده چې نوموړی به نه يوازې زموږ د زاړه، وراسته او جنگ ځپلي تحصيلي نصاب رُخ له اوسني شرمېدلي و علم ضد حالته راگرځوي او د نوي زمانې د معيار له روح سره به ئې عياروي بلکې زموږ د استادانو ځوان نسل به هم له دغه واقعي مستعد او ورسره وطندوست و با

احساس استاد ځخه د وياړلو پرمختګو او لويو خدمتو الهامات اخلي.

**له ادبياتو سره مينه او كار:**

له ادبياتو سره يارانه ئې پخوانۍ ده ځكه ذوق او شوق ئې دواړه، د ده په ژبه، دغه په ظاهره آسانه خو باطن كي سخت هنر ته جوړ دي؛ په دې برخه كي ئې د نورو پر آثارو ډېر خوند اخيستى دئ، له تحقيقي مسايلو سره ئې علاقې ښه پوره جوش خوړلى دئ، ليكني او مقالې ئې په مختلفو مجلو و ورځپاڼو كي خپرې سوي خو دقيق حساب ئې نه دئ ور مالوم.

د ځينو موضوعاتو په اړه ئې د ځو مستقلو آثارو ليكل سرښته كړي خو تر اوسه ئې (د ښوا كتابښود) په نوم يو ځني ليكلى دئ او ځومره چي د ده تعهد او هوډ پېژنم نو نه يوازي به دا نور هم بشپړوي بلكي د نورو د سرښتې او تكميل له پاره به هم مهمي سوژې مومي.

پر ښتو و پارسي سربېره په انګرېزي هم پوره پوهېږي، په عربي و اردو كي هم له ډېر مشكل سره نه مخېږي.

داچي استاد روهيال په يوه پوهه او علمپروره كورنۍ كي را لوى سوى، كه څه هم كډه په شا ژوند ئې په برخه وو خو يا يوه بسته خونه او يا هم د ښلابېلو خونو تاخچې و دربندونه به ئې د اروابناد پلار كتابو نيولي ول، هغه چي وائي:

د باز په ځاله كي د باز بچي وي.
يا: چي اوسې په خوى به دهغو سې.
يا هم: د ښو غوښو ښه ښوروا وي.

نو د همدغه اولسي فلسفې پر اساس ئې طبعاً بايد له كتاب، ادب او تحقيق سره مينه پيدا سوې واى كه نه د هغسي دوږخي حالاتو په سره تناره كي چي د روهيال نسل زېږېدلى، په همدغه سره بټۍ كي را لوى سوى او تر ننه هم د جنګ و جهالت په تور جهنم كي ايشي نو دا ډېره سخته ده چي يو ځوک دي ځان ته د علم وفرهنګ داسي روڼ او وياړلى واټ ايجاد كاندي، هغه هم په داسي حال كي چي كمونيستي، جهادي، طالبي او ترووريستي پيشتكيانو دي ئې د پنځه زره كلن تمدن، پوهي او فكر باغ داسي ور لاښ كړى وي چي د قسم له پاره ئې د يوې مېوې بوى هم نه وي پكښي پرې ايښى.

دغه د فرهنګ اتل نام خدا اوس تقريباً د درو زرو ټوكو په شمېر يو غنيمت شخصي كتابتون لري، په كتابخانه كي ئې تقريباً د لسو په شاوخوا كي قلمي نسخې موجودي دي؛ نه پوهېږم چي دا به د دغو نسخو قسمت ښه وو يا زموږ ښوزلو بخت بيدار وو چي تر ټولو ډاډمن او اصلي ځاى ته رسېدلي دي.

**مدني حال:**

د ۱۳۸۸ ش كال د عقرب پر ۱۰ – مه، يكشنبه ئې واده وكړ، اول ثمر ئې زوى پردېس، دوهمه ئې لور تلوسه او دريېم ئې بيا زوى ساحل راغى.

**تحقيق:**

له تحقيقي مسائلو سره ئې علاقه ذوقي ده، كه پر دې ډګر له يوې خوا د استاد محمد

معصوم هوتک او استاد زلمي هیوادمل هڅونو مرسته ورسره کړې ده نو له بله اړخه په لرغوني او معاصر کندهار کي د تمدن، علم، ادب، هنر او تحقیق هغه پوخ پسمنظر هم بې تاثیره نه سو بللای چي د دغي علمي- فرهنګي حوزې تاریخ څني برخمن دئ او د پنځه زره کلن تاریخ پوخ سند یائي منډیګک، په زاړه ښار کي د مرحوم حاجي میرویس خان نیکه د ادبپروره ځوان زوی شاه حسین هوتک ادبي دربار او له هغه ځخه را پاته ستر یادګار (پټه خزانه)، د لوی احمدشاه بابا علمپروره دربار، د سردار مهردل خان مشرقي ادبستان کندهار او بالآخره په ۱۳۱۱ ل کال کي ادبي انجمن ئې عمده سرلیکونه دي چي تفصیل ئې سمندر دئ او د دغه درنښت په ارزښت نو روهیال غوندي د فرهنګ عاشقان پوهیږي، نور ئې نو اکثریت نسل د جګړې و جهالت دوړو و دود داسي لاندي کړی چي بدرو ئې څني ورک کړی، نه خپل خیر و شر پېژني نه د بل؛ لوی غم لا دا چي پر عوام الناسو خو ئې د بحث سوال نه پیدا کېږي ځکه هغه پوهنتون ئې هم تر غوړو و سړمو د افراطیت په خباثت کي ډوب دی او د قربانۍ یو عالمګیر مثال ئې زموږ یو بل ځوانیمرګ محقق او هنرمن عبدالقدیم پتیال دئ.

سړی اریان سي چي په دغسي یوه جهنمي مځکه کی روهیال غوندي ګلان څنګه غوړېدلای سي؟ د دښمنانو سترګي دي ئې له اغزیو ډکي او دوستان دي ئې له خوړو وړمو و ښکلاګانو تل تر تله برخمن وي.

**د کندهار مجلې مسئولیت:**

که څه هم له ۱۳۸۵ش کال ځخه پر کندهار مجله د مسئول مدیر په صفت د ښادروان عبدالمجید بابي نوم لیکلی دئ خو واقعیت دا دئ چي پر ته له سرلیکني، چي هغه مرحوم به لیکله، نوري ټولي چاري، له الفه تر یا، د روهیال دغاړي وي او د ۱۳۹۲ کال له اولي ګني څخه ئې تر ننه رسماً مدیریت په لاس کي دئ او کوښښ کوي چي په ادبي، تاریخي او کلتوري برخو کي د مشرانو او ځوانانو نوي تحقیقات، ترجمې او لیکني خپرې کړي.

**ټولنیز کرکټر:**

زه د کندهار د ټولنیز کرکټر دې واقعیت ته ډېر سوچ کوم چي څنګه ئې پر یوه سر، سخت، زیږ، پایلوچ، ډېر وخت سر ناخلاصه او په جهالت کي خوښ طبیعت حاکم دئ او پر دا بل ئې بیا چي د چا پوهي ته ور مخ سوی دئ نو داسي د شخصیتي سنګینۍ مثالونه ئې را میدان ته کړي دي چي سړی داسي درنښت ته ارباښېږي؛ پر لاره تګ منظم، حرکات و سکنات محتاط، خبري شمېرلي لکه له کتابه چي رغیږي، راشه- درشه صمیمانه، برخورد مؤدبانه او.... یوه ښېلګه به ئې د علامه رشاد بابا ور کړم ځکه هغه د خپل نسل د پوهانو په نسبت تر ټولو زیات زموږ د ځوان فرهنګي کهول سره نژدې او محشور وو، تل به ئې د هري سطحي لوی و کوشنی پر روښان علمي غولي را ټول وو او زموږ اکثرو ځوانانو د هغه علمي تبحر، مینه ناک چلن، اصولي لارښووني او له ښساري سنګینۍ ډک

مجلسونه مخامخ ليدلي دي، اوس ئې پر برکتناک میراث ناسته کورنۍ هم له عيني اعتباره برخورداره ده.

ما چې څومره ليده- کاته کړي نو زموږ د مشرانو دغه دروند خوی و خصلت مې د خپل نسل په دوو ځوانانو کې تر هر چا زيات مشاهده کړی چې يو ئې د ابدي ېبلتون په چپلاخه راڅخه ېبل کدر، عبدالقديم پتيال او دوهم ئې همدا استاد روهيال دئ.

نوموړی خپله هم منې چې گوښه نشين دئ، ځيني ځوانان ئې پر همدغه عادت نيوکه کوي چې که ئې په ځوانو فرهنگي بهيرو، غونډو او بانډارو کې گډون کولای، هم به د ده روابط و تجارب زياتېدلای او هم به ئې پر نورو تاثيرات و برکات اوربدلای خو زه ئې په جواب کې وايم: څوک څه پوهېږي چې ممکن همدا گوښه گير کرکټر ئې د دې باعث سوی وي چې نن ئې دی په يوه کمساري کدر اړولی دئ ځکه په ۲۰۰۱ ع کال کې افغانستان ته د ډيموکراسۍ او بيان آزادۍ په بيا راتگ سره، چې موږ لا ډېر له ډيموکراتيکو اخلاقو او تربيې سره روږد نه وو، نو کله ناکله به دلته و هلته د يو شمېر فرهنگي و مدني فعالانو تر منځ ځيني جنجالونه پيښېدل او د مثبتو پرمختياوو پر ځای به په منفي تا ويل ما ويل وختونه ضايع کېدل مگر د خدای د دغه بنده سپوږ به هم چا په دغسي بې مانا کشمکشو کې نه وي اورېدلی ځکه له ښه مرغه چې دی گوښه نشين وو او د گوښه گيرۍ نتيجه ئې دا سوه چې نه څوک ځني آزار سو او نه ئې پر خپله ښه چا ته د ختو بهانه ورکړه او دا دئ نن په خپله اجتماع کې دافغاني فرهنگ د سر تاج دئ.

**ليکلي او ترتيب کړي آثار:**

الف- ليکلي (چاپ):

۱- د بېنوا کتابتون، د محمدمعصوم هوتک له لنډ يادښت سره، چاپکال: ۱۳۹۳، مخ شمېر: ۱۴۴، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډيزاين: روهيال کمپيوټر اداره، خپروونکی: علامه رشاد خپرندويه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۹۱، چاپځای: ملالۍ مطبعه (کندهار).

**ناچاپ:**

۲- د حبيبي کتابتون.

۳- پښتو ښراوي.

۴- پښتو دعاوي.

**تدوين او بيا احياء (چاپ):**

۵- د عبدالله محزون پوپلزي دېوان (نقل، تصحيح او لغتنامه)، سريزه او لمن ليکونه: محمدمعصوم هوتک، چاپ: ۱۳۹۲ ش- ۲۰۱۳ ع، مخ شمېر: ۱۵۶، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډيزاين: روهيال کمپيوټر اداره، خپروونکی: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنگ رياست، چاپځای: ملالۍ مطبعه کندهار- افغانستان.

۶- د گل محمد مالگيري دېوان (سريزه، سمون او لغتنامه)، چاپکال: ۱۳۹۳ ش، مخ شمېر: ۱۶۰، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډيزاين: روهيال کمپيوټر

اداره، خپروونکی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه، د خپرونو لړ: ۸۶، چاپځای: ملالۍ مطبعه.

۷- د جدید توخي دېوان (سریزه، سمون او لغتنامه)، دوه یادښتونه: سید خیر محمد عارف (صدر پښتو اکېډمۍ کوټه) او ډاکټر عبدالرؤف رفیقي، چاپکال: ۲۰۱۵ ع، مخ شمېر: ۲۶۳، د چاپ شمېر: ۵۰۰ (ټوکه)، ډیزاین: خلیل الله تصمیم، خورونکی: پښتو اکېډمۍ بلوچستان کوټه.

۸- اوسني لیکوال (بشپړ متن)، ترتیب او زیاتوني، لیکوال: عبدالرؤف بېنوا، چاپکال: ۱۳۸۸ ش- ۲۰۰۹ ع، مخ شمېر: ۱۱۹۹، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ زر ټوکه، کمپوز او ډیزاین: م. روهیال، چاپچاري او د ټایټل طرحه: صحاف نشراتي مؤسسه، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه، د خپرونو لړ: ۳۱، کندهار.

۹- پښتانه شعراء (بشپړ متن)، ترتیب، تصحیح او زیاتوني، لیکوالان: (علامه عبدالحی حبیبي، پوهاند صدیق الله رښتین، علامه عبدالشکور رشاد او سرمحقق عبدالله بختاني)، د دوهم چاپ یادښت: محمد معصوم هوتک، دوهم چاپ: ۱۳۹۱ ش- ۲۰۱۲ع، مخ شمېر: ۱۲۱۶، چاپ شمېر: زر ټوکه، کمپوز او ډیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، خپروونکی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه، کندهار- افغانستان.

۱۰- د بېنوا شعري کلیات، (ټولونه، سمون او سریزه)، یادښت: عبدالباري جهاني، چاپکال: ۱۳۹۳ ش، مخ شمېر: ۲۸۰، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۸۵، چاپځای: ملالۍ مطبعه.

۱۱- د حبیبي شعري کلیات (ټولونه، سمون او ترتیب)، یادښت: محمد معصوم هوتک، چاپ: ۱۳۹۳ ش، مخ شمېر: ۳۲۸، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز اوډیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، خپروونکی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۸۴، چاپځای: ملالۍ مطبعه.

۱۲- پرېشانه افکار - د بېنوا نثري ټوټې (سریزه او ټولونه)

۱۳- خوږ بانډار- د استاد نوري (سریزه او ترتیب)

۱۴- زوړ کندهار- د استاد نوري (سریزه او ترتیب)

۱۵- کندهاري خطاطان (لومړۍ برخه)، د عبدالقدوس نجیب کندهاري تتبع او لیکنه، (زیار او سمون)، چاپکال: ۱۳۹۳ ش، مخ شمېر: ۹۶، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۹۰، چاپځای: ملالۍ مطبعه.

۱۶- اراکوزیا - د نجیب کندهاري (سریزه او ټولونه)

۱۷- د پښتو د شعر او ادب خواږه اړخونه او خوندوري خواوي، لیکوال: م. عبدالخالق واسعي، زیار او سمون، چاپکال: ۱۳۹۳ ش، مخ شمېر: ۸۸، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه،

کمپوز او ډیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۸۷، چاپځای: ملالۍ مطبعه.

۱۸- د پښتو ادبي او شعري قاموس، لیکوال: م. عبدالخالق واسعي، زیار او سمون، د ډاکتر عبدالرازق پالوال یادښت، چاپکال: ۱۳۹۳ ش، مخ شمېر: ۱۱۲، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۸۸، چاپځای: ملالۍ مطبعه.

۱۹- ملي هینداره (اول، دوهم او دریم ټوک)، مؤلف: محمد گل نوري، مهتمم: مطیع الله روهیال، سریزه: محمد معصوم هوتک، چاپکال: ۱۳۸۷ ش= ۲۰۰۸ م، مخ شمېر: ۴۵۴، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: م.روهیال، د پښتې طرح: ع. افغانزی، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۲۲.

۲۰- تاریخچهء سبکهای اشعار پښتو، علامه عبدالحی حبیبی، چاپ اول: ۱۳۱۹ ش- کابل، چاپ دوم: ۱۳۹۰ ش= ۲۰۱۲ ع، صفحات: ۱۲۰، تیراژ: هزار جلد، کمپوز و دیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، ناشر: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار- افغانستان، نمبر مسلسل: ۵۶.

۲۱- کندهاري معماران، لیکنه او ترجمه: انجنیر محمد حسن نعیمي، چاپکال: ۱۳۹۳ ش، مخ شمېر: ۴۰، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: روهیال کمپیوټر اداره، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۹۳، چاپځای: ملالۍ مطبعه (کندهار).

۲۲- تتمه البیان فی التاریخ الافغان، سید جمال الدین افغان، ژباړن: اروابښاد محمد رفیق حبیبي، لمنلیکونه او زیاتونې: محمدمعصوم هوتک، تصحیح او مقابله: مطیع الله روهیال، د ژباړلو کال: ۱۳۱۸ ش، چاپکال: ۱۳۸۶ ل= ۲۰۰۷ ع، مخ شمېر: ۱۲۰، چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز: م. روهیال، خپرندوی: د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه- جرمني، د خپرونو لړ: ۸۹.

**ناچاپ:**

۲۳- د بریالي دیوان (سریزه، سمون او لغتنامه)

۲۴- د رحمت داوي دیوان (سریزه، سمون او لغتنامه)

۲۵- د ملا رحمت الله بابا دیوان (سریزه، سمون او لغتنامه)

۲۶- د ملا شېرمحمد دیوان (سریزه، سمون او لغتنامه)

۲۷- د عبدالنبي بېتني دیوان (سریزه، سمون او لغتنامه)

۲۸- د ملا عبدالمنان حیرت دیوان (سریزه، سمون او لغتنامه)

۲۹- د نسیم گل- د اروابښاد نسیم نوري ناچاپه اثر (سریزه او ترتیب)

**ترتیب، تدوین او ټولوني:**

۳۰- کندهار د تاریخ په اوږدو کې (د سیمینار د مقالو ټولگه)، چاپکال: ۱۳۸۴ ش،

مخ شمېر: ۳۸۸، چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: رشاد کمپیوټر اداره (روهیال)، خپرندوی: د کندهار اطلاعات و کلتور ریاست، د خپرونو لړ: ۲، چاپچاري: صحاف نشراتي مؤسسه.

۳۱- ښېنوا یادونه (د مقالو ټولگه)، چاپکال: ۱۳۹۰ ش= ۲۰۱۱ ع، مخ شمېر: ۲۸۸، چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: روهیال کمپیوتر اداره، خپرندوی: د اطلاعاتو او فرهنگ ریاست، د خپرونو لړ: ۴۱، مالي لگښت: عینو خیریه بنیاد، کندهار.

۳۲- شل مقالې (پنځلس برخي - د علامه حبیبي د مقالو ټولگي)، خپرندوی: د رشاد خپرندویه ټولني تر څنگ د بېلابېلو ټولنو له خوا او په مختلفو وختو کي.

۳۳- د پښتو ادب لنډ تاریخ (د علامه حبیبي اثر)، چاپکال: ۱۳۸۷ ش= ۲۰۰۸ ع، مخ شمېر: ۲۶۸، چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه، کمپوز او ډیزاین: مطیع الله روهیال، خپرندوی: علامه رشاد خپرندویه ټولنه- کندهار، د خپرونو لړ: ۲۳، مالي لگښت: د علامه حبیبي د څېړنو مرکز.

**علامه رشاد خپرندویه ټولنه:**

دغه د فعال روهیال په پُرفیضه بازو رامنځته سوې، فعاله او له افتخاره سرشاره ټولنه ده چي په ۱۳۸۳ کال کي تاسیس سوې ده چي مؤسس، **مدیر،** پرسونل او هرڅه ئې یکي- یوازي په یوه سر سره همدا یو کس دئ، که تر دې دمه ئې چا په دغه کم و کیف بل مثال پیدا کړ نو مادي هم په خبر کړي.

ټیک په همدغه کال (کندهار د تاریخ په اوږدو کي) سیمینار ته علامه رشاد بابا هم له کابله تشریف را وړی وو، په یوه ترځ کي ئې روهیال څنگ ته ورغی او تر غوږ ئې ور تېره کړه چي دی، په دغه نوم، دغسي یوه اراده لري؛ علامه بابا له خپل معمول سره سم درنه خندا ور ته وکړه او ور ته و ئې ویل چي زه به یو مستحق سړی در وښیم: د میرزا حنان بارکزي په نوم ئې ونوموه خو په دا سبا بیا روهیال ورسره پر بغل سو او غوځه ئې ور غبرگه کړه چي (خدای یو مالگي تروې) چي په همدغه نامه به ئې نوموم، نور نو هغه سنگین شخصیت څه ورته ویلای سوای او نور نو کار او بېساري کار د پیاوړي محقق محمدمعصوم هوتک د (احمدشاهي کندهار / اول ټوک) په چاپ سره په همدغه کال کي شروع سو.

د دغي ټولني له چینله د استاد روهیال د خپلو لیکلو، تدوین کړو، احیاء کړو او را ټولو کړو آثارو تر څنگ، چي لوړ معرفي سول، د نورو کتابونه ئې هم چاپ کړي دي چي دلته ئې د دې لیکني د وروستي سند په توگه په لنډیز سره د لیست وړاندي کول ضروري بریښي:

۱. احمدشاهي کندهار (اول ټوک)/م. معصوم هوتک
۲. احمدشاهي کندهار (دوهم ټوک)م. معصوم هوتک
۳. پر معیاري ژبه د معیار په ژبه یوه څېړنه/ م. معصوم هوتک - ۱۳۸٦ش

۴. د پلار لیکونه لور ته/ د نسیم سلیمي ترجمه - ۱۳۸٦ش
۵. انکار/ شاعر: عبدالقدیم پتیال - ۱۳۸٦ش
٦. د پښتنو د ټولنیز تاریخ مبادي/ محمدانور نومیالی - ۱۳۸٦ش
۷. د کوډو سرنوشت د علمي پلټني په رڼا کي/ محمد انور نومیالی - ۱۳۸٦ش
۸. په افغانستان کي د یوه بندي خاطرات/ د نسیم سلیمي ترجمه - ۱۳۸٦ش
۹. شل مقالې (نهمه برخه)/ علامه حبیبي - ۱۳۸٦ش
۱۰. شل مقالې (لسمه برخه)/ علامه حبیبي - ۱۳۸٦ش
۱۱. کشف شاهنامه قبل از دورهٔ مغل/ علامه حبیبي - ۱۳۸٦ش
۱۲. د خلیل الله خلیل دېوان/ شاعر خلیل الله خلیل - ۱۳۸٦ش
۱۳. پښتو متلونه/ د نسیم سلیمي ټولونه - ۱۳۸٦ش
۱۴. احمد شاهي کندهار (دواړه ټوکه یو ځای)/ م. معصوم هوتک - ۱۳۹۲ش
۱۵. شل مقالې (یوولسمه برخه)/ علامه حبیبي - ۱۳۸٦ش
۱٦. شل مقالې (دوولسمه برخه)/ علامه حبیبي - ۱۳۸٦ش
۱۷. شل مقالې (دیارلسمه برخه)/ علامه حبیبي - ۱۳۸٦ش
۱۸. افغان شاغاسیان (انګریزي)/ م. معصوم هوتک - ۲۰۰۸م
۱۹. ستایني او وېرني/ عبدالمجید بابی - ۱۳۸۷ش
۲۰. پښتو ستا میني بوداپیست ته بوتلم/ م. معصوم هوتک - ۱۳۸۷ش
۲۱. انګور/ علي محمد کرزی - ۱۳۸۷ش
۲۲. ملي هینداره (دري ټوکه)/ محمدګل نوري - ۱۳۸۷ش
۲۳. د پښتو ادب لنډ تاریخ (دوه ټوکه)/ علامه حبیبي - ۱۳۸۷ش
۲۴. پولیټکل ساینس ته یوه کتنه/ د صدیق ظهیر ترجمه - ۱۳۸۷ش
۲۵. د میوند فاتح/ د عبدالنافع ثنا ترجمه - ۱۳۸۷ش
۲٦. د بېنوا پرېشانه افکار (دوهمه برخه - نثر)/ استاد بېنوا - ۱۳۸۷ش
۲۷. کندهاري ورونه/ م. معصوم هوتک - ۱۳۸۷ش
۲۸. پردېس بېنوا/ عبدالقدیم پتیال - ۱۳۸۷ش
۲۹. د کندهار دودونه/ مولانا عبدالخالق واسعي - ۱۳۸۷ش
۳۰. د کندهار مشاهیر/ محمدولي ځلمی - ۱۳۸۷ش
۳۱. اوسني لیکوال (دري ټوکه)/ استاد عبدالرؤف بېنوا - ۱۳۸۸ش
۳۲. نبوي معجزې/ مولوي عبدالهادي حماد - ۱۳۸۸ش

۳۳. نبوي کورنۍ/ مولوي عبدالهادي حماد - ۱۳۸۸ش
۳۴. ځوان کلونه ناځوان وختونه/ شاعر: سعید لودین - ۱۳۸۸ش
۳۵. د لومړي افغان - انګرېز جنګ مقدمه/ د نسیم سلیمي ترجمه - ۱۳۸۸ش
۳۶. اراکوزیا/ عبدالقدوس نجیب - ۱۳۸۸ش
۳۷. په کندهار کې کورنۍ جوړښت/ د اکاډمیسین کاندید ظاهر افق - ۱۳۸۸ش
۳۸. د کندهار ښار/ عبدالهادي ریشا - ۱۳۸۸ش
۳۹. افغانان نه ژاړي/ حاجي محمد رزمي - ۱۳۸۹ش
۴۰. له کندهاره تر اټکه/ م. معصوم هوتک - ۱۳۸۹ش
۴۱. پردېس عربي قاموس/ د اخترمحمد جهید ترجمه - ۱۳۸۹ش
۴۲. د پښتو ژبې ننۍ مسئلې/ محمد هارون خپل - ۱۳۸۹ش
۴۳. افغانستان، سیاسي کمزوري - بهرنۍ مداخله/ د ډاکټر نثاراحمد صمد ترجمه - ۱۳۸۹ش
۴۴. لیک نښې/ ظاهر افق - ۱۳۸۹ش
۴۵. ویکبلري/ محمد نعیم قاسمي - ۱۳۸۹ش
۴۶. پټه خزانه/ محمد هوتک - ۱۳۹۰ش
۴۷. ادبي فنون/ استاد بېنوا - ۱۳۹۰ش
۴۸. پښتني قبیلې/ م. معصوم هوتک - ۱۳۹۰ش
۴۹. بین المللي سیاست ته یوه کتنه/ د صدیق ظهیر ترجمه - ۱۳۹۰ش
۵۰. د پند او عبرت قصې: لومړی ټوک/ ډاکټر نثاراحمد صمد - ۱۳۹۰ش
۵۱. پند او عبرت/ شاعر: عبدالباري جهاني - ۱۳۹۰ش
۵۲. کلیله او دمنه/ د صالح محمد زېري ترجمه - ۱۳۹۰ش
۵۳. د پښتو فوکلوري نکلو لنډ تحلیل/ عبدالباري جهاني - ۱۳۹۰ش
۵۴. پښتو متون سمېدل غواړي/ م. معصوم هوتک - ۱۳۹۰ش
۵۵. تاریخچهٔ شعر پښتو/ علامه حبیبي - ۱۳۹۰ش
۵۶. تاریخچهٔ سبکهای شعر پښتو/ علامه حبیبي - ۱۳۹۰ش
۵۷. پښتو و لویکان غزنه/ علامه حبیبي - ۱۳۹۰ش
۵۸. پند او عبرت (دوهم چاپ د زیاتونو سره)/ عبدالباري جهاني - ۱۳۹۱ش
۵۹. احمدشاهي کندهار (دریم چاپ)/م. معصوم هوتک
۶۰. پښتانه شعراء (اول ټوک)/ علامه عبدالحی حبیبي - ۱۳۹۱ش
۶۱. پښتانه شعراء (دوهم ټوک) پوهاند صدیق الله رښتین - ۱۳۹۱ش
۶۲. پښتانه شعراء (دریم ټوک) پوهاند عبدالشکور رشاد - ۱۳۹۱ش

٦٣. پښتانه شعراء (څلرم ټوک) سرمحقق عبدالله بختاني - ١٣٩١ش
٦۴. پښتانه شعراء (پنځم ټوک)/ سرمحقق عبدالله بختاني - ١٣٩١ش
٦۵. د ناوې مخور/ م. معصوم هوتک - ١٣٩١ش
٦٦. اخلاقي کنايې/ ډاکټر نشاراحمد صمد - ١٣٩١ش
٦٧. تعميي او تاريخي مادې په پښتو ادب کې/ م. معصوم هوتک - ١٣٩١ش
٦٨. خوږ باندار/ محمد گل نوري - ١٣٩١ش
٦٩. د افغانستان لنډ تاريخ/ علامه حبيبي - ١٣٩١ش
٧٠. زر او يوه شپه (څلرم ټوک)/ د م. معصوم هوتک ترجمه - ١٣٩١ش
٧١. زر او يوه شپه (پنځم ټوک)/ د م. معصوم هوتک ترجمه - ١٣٩١ش
٧٢. زوړ کندهار
٧٣. زر او يوه شپه (لومړی ټوک)/ د محمد انور نوميالي ترجمه - ١٣٩٢ش
٧۴. زر او يوه شپه (دوهم ټوک)/ د محمد انور نوميالي ترجمه - ١٣٩٢ش
٧۵. زر او يوه شپه (دريم ټوک)/ د محمد انور نوميالي ترجمه - ١٣٩٢ش
٧٦. زر او يوه شپه (شپږم ټوک)/ د م. معصوم هوتک ترجمه - ١٣٩٢ش
٧٧. زر او يوه شپه (اووم ټوک)/ د م. معصوم هوتک ترجمه - ١٣٩٢ش
٧٨. زر او يوه شپه (اتم ټوک)/ د م. معصوم هوتک ترجمه - ١٣٩٢ش
٧٩. زر او يوه شپه (نهم ټوک)/ د م. معصوم هوتک ترجمه - ١٣٩٢ش
٨٠. زر او يوه شپه (لسم ټوک)/ د م. معصوم هوتک ترجمه - ١٣٩٢ش
٨١. خپل وطنه گل وطنه/ عبدالنافع همت - ١٣٩٣ش
٨٢. د حبيبي شعري کليات/ شاعر: علامه حبيبي - ١٣٩٣ش
٨٣. د بېنوا شعري کليات/ شاعر: استاد بېنوا - ١٣٩٣ش
٨۴. د گل محمد مالگيري ديوان - ١٣٩٣ش
٨۵. د پښتو شعر خواږه اړخونه او خوندوري خواوې/ م. عبدالخالق واسعي - ١٣٩٣ش
٨٦. د پښتو شعري او ادبي قاموس/م. عبدالخالق واسعي - ١٣٩٣ش
٨٧. هغه پلا او دا پلا/ محمد انور نوميالی - ١٣٩٣ش
٨٨. کندهاري خطاطان/ عبدالقدوس نجيب - ١٣٩٣ش
٨٩. د بېنوا کتابښود/ مطيع الله روهيال - ١٣٩٣ش
٩٠. معرفة الافغاني/ پير محمد کاکړ - ١٣٩٣ش
٩١. کندهاري معماران/ محمد حسن نعيمي - ١٣٩٣ش
٩٢. د پند او عبرت قصې (دوهم ټوک)/ ډاکټر نشاراحمد صمد - ١٣٩٣ش



ليکوال: استاد محمد معصوم هوتک/کاناډا

# د ملا عبدالمنان حيرت دېوان ته يوه کتنه

د اماني عصرله پيل څخه د کندهار په فرهنګي حوزه کي يو پياوړی ادبي تحرک بيا راژوندی سو او هغه ادبي هنګامه ئې بيا توده کړه چي د څه وخت له پاره په دغه حوزه کي لږ څه خاموشه سوې وه. د دې خوځښت په نتيجه کي يو شمېر داسي محلي شاعران د ادب ډګر ته راوړاندي سول چي اشعار ئې هم د کميت په لحاظ او هم د کيفيت له مخي په دې ارزي چي د پښتو ادبياتو په تاريخ کي ورته يو ځانګړی فصل اختصاص سي. د دې شاعرانو ادبي متاع هم د موسيقۍ په بزمو کي بازار درلود او هم په ادبي محافلو او مطبوعاتي پاڼو کي. ملا عبدالسلام بابا، رحمت الله بابا، حکيم محمدعيسی، ملا عبدالمنان، عبدالله نورزی، عبدالله محزون، ملا ميران او نور د دغه وخت په محلي شاعرانو کي د نامه څښتنان دي. په دوی کي يو شمېر کسانو د دېوانو ترتيبولو هڅه هم کړې ده او له نېکه مرغه ئې راته د شعر بشپړ دېوانونه پرې ايښي دي. ملا عبدالمنان حيرت د دغي ډلي د شاعرانو د ليکي په سر کي ځای لري. د ده شعر سربېره پر دې چي يو خاص سوز لري، دغه راز ئې د نورو همعصرو په تناسب ټولنيز ژوند ته هم په نقادانه نظر کتلي دي. ده موږ ته دوه مردف دېوانونه په ميراث پرې ايښي دي چي په هغو کي پر غزلياتو او د شعر پر نورو انواعو سربېره د مقامي شاعرۍ يوه درنه زېرمه هم خوندي ده.

زما د معلوماتو له مخي د ده پر شعر او ژوند باندي د کندهار د زرغوني انا د لېسې د

پښتو استاد ارواښاد سعدالله خان له ادبیاتو پوهنځي څخه د فارغېدو پر وخت خپل مونوګراف د علامه رشاد تر لارښوونې لاندې کښلی وو او د ده ښه ډېري غزلې ئې راغونډې کړي وې. دغه راز په اوسني لیکوال کې هم د ده پر ژوند او شاعري باندې بیان سته چې ارواښاد محمدیوسف ویران د اوسني لیکوال د فاضل مولف ارواښاد ښېنوا په غوښتنه کښلی وو.

ملا عبدالمنان حیرت د کندهار ښار د کابل بازار په ملا ګلداد کوڅه کې اوسېدی. د ملا ګلداد اخوند د جامع شمالي اړخ ته یوه نرۍ کوڅه مخ پر ختیځ وتلې وه او درې څلور کوره پکښې ول. د ملا عبدالمنان او د هغه د ورور عبدالحنان کورونه په همدغه کوڅه کې واقع ول. دا کوڅه بندې ده او شا ته ئې د کابل دروازې جنوبي کلافصیل پروت دئ.

ملا عبدالمنان حیرت غنم رنګه چارشانه سړی وو، توره و سپینه کوندۍ ږیره ئې درلوده. د سپین یا تور پاچ بګړۍ ئې تړله. سهار وختي به له کوره دوکان ته، چې تر کابل دروازې دباندې د بالاکرز کوڅې څنګ ته واقع وو، ووت او د شپې به ناوخته بیرته کور ته راتلی. زه چې به کله له ښوونځي څخه کور ته راتلم، زیاتره به مې د ملا منان اخوند دوکان ته نظر اړاوه. دی به هر کله په دوکان کې یوازې ناست وو، تل به چورت وړی وو او کله کله به ئې له ځانه سره شعر زمزمه کاوه.

ارواښاد محمدافضل خان لودین به مې هم کله کله د ده پر دوکان ناست لیدی. دوی دوه له زلمیتوب څخه نږدې ملګري او د یوې کوڅې اوسېدونکي ول. د ملا ګلداد کوڅې یو بل اوسېدونکی حاجي ګل محمد هم د دوی له ملګرو څخه وو. د دوی د ظرافتو کیسې د کندهار خلکو ډېرې په خوند کولې.

ما څو کاله وړاندې ګران روهیال ته د ملا عبدالمنان اخوند د دېوان څرک په لاس ورکړ او ورڅخه ومې غوښتل چې د دغه دېوان د موندلو په لټه کې سي. روهیال ډېر زیارکښ زلمی دئ او خورا ژر ئې دغه دېوان وموند. لومړۍ برخه ئې ټایپ کړه او ما ته ئې راولېږله. ما ئې ناسم ځایونه ورسم کړل او فکر کوم چې نور به نو چاپ ته تیار وي. د ده په دېوان کې مې یو لړ مطالب وموندل چې د دې لیکنې له لارې ئې ستاسې سره شریکوم.

ملا عبدالمنان اخوند د میرزا عبدالرحمن زوی او د ملا نصرالله اخوند لمسی دئ. په اوسني لیکوال کې په ختټه کاکړ بلل سوی دئ (وګ: نوی چاپ ـ ۳۲۶مخ) خو دی په خپل دېوان کې ځان د "فلاني زي" او "غلجي و دراني" له چوکاټه وتلی ګڼي او وایي چې په مذهب او نسب دواړو "حنفي" دئ او د غزني اولیاءالله ئې "عزیزان" دي. دی ځان د حضرت سنایي صاحب په ټبر پوري تړلی تاجیک بولي. د ده خپله وینا داسې ده:

نوی ذات فلانی زی نه یم پخوانی یم
د یــــوسف و بنیامــین راپاتنی یم
زما مـذهب و نسب دواړه حنفي دي
زه په خـــته نه غلــجی نه درانی یم
د غـزني اولیاءالله مي عـــزیزان دي
د حکـیم ســنایي د کـور مریی یم
عجـــم نســل د یوسف نبي د ورونو
په یوه ســـر تر یـــوســف ورته نری یم

دابا نوم مي مــــيرزا عبدالرحمن دئ
د صاحب ملا نصرالله اخوند لمسی یم
که تاجیک یې حُزن وړه عـــبدالمنانه
کـنه نه یم د یوسف نســـله پردی یم

په کندهارکي پښتانه تاجیک نور هم سته. مشهور نعت سراء شاعر حاجي غلام فاروق بوټ ساز له همدې پښتنو تاجیکو څخه دئ. خو ملا عبدالمنان اخوند د پراخ نظر څښتن شاعر دئ. دی د یوه منور شاعر په توګه په نسب باندي فخر "جنون" بولي او انسانان له یوه پلاره پیدا ګڼي. دی وايي:

**فخر و غاړه په نسب خوشي د خپل وخت صرفېده دي**
**لــه یوه پلاره پیـــدا دي انسانان، پرېږده جـــنون**
**خیال و مـــال و نسب پرېږده، شــرف علم و ادب دئ**
**په غـــور واوره، په زړه نقش کړه دا زما باریک مضمون**

په اوسني لیکوال کي ئې د زېږېدو نېټه ۱۲۸۰ ش ښوول سوې ده چي دا سنه د ده له خپلي وینا سره د یوه کال توپیر لري. دی د خپل دېوان په سر کي یوه اوږده منظومه لري چي په دې بیت پیل کېږي:

عـــجب ژوند ســـو د دنیا
که وا خوښ دي دئ، وام یا

د دې منظومې په یوه برخه کي ئې ځان څلوېښت کلن بللی او د منظومې د ویلو کال ئې ۱۳۶۲هـ ق ښوولی دئ.

دیرلس سوه دوشپېته سوه
چي ســــنه دا هـــویدا
زما څلوېښت کاله پوره سوه
له ســـــاعته د پیـــدا

د ۱۳۶۲هـ ق کال لومړی ورځ د۱۳۲۱ش کال دمرغومي (جدي) له ۲۹مي سره برابره ده او له دغه کال څخه چي څلوېښت کم سي ۱۲۸۱ پاتېږي،

د ملا عبدالمنان وروستی تخلص "حیرت" وو. خو ده په خپل دېوان کي خپل تخلص څو ځایه "محزون" او "بیجان" لیکلی دئ:

په شاعــري کي مي ملا ستايي شاعر نه یمه
زه ځان د ډېر عمره محزون عبدالمنان بولم

یا:

جانانه زه عبدالمنان محزون زبون یم په غم
مه کوه جـبر و ستم
پر سینه زمـا کتاب له غمه د هجران سو رقم
راسه یو وار غنچه فم
د شکري لـبو په یاد دي خدای پاري ګرځمه
رنګ په یاري ګرځمه

او یا:

**ســـتا په یاد چي وایم ترانه عـــــبدالمنان یمه**
**زما څه محبت دئ (چي) دا ستا له خوا نه ګران یمه**
**یاره کـــــه ته نه یې زه له کمي خـــوا ویان یمه**
**څه وه زمـــا محزون او د موزون شیرین ګفتار سره**

د "بیجان" تخلص ئې د ځینو غزلو په مقطع کي داسي راغلی دئ:

چي د تقدیر ســـره تدبیر بېـجانه نه رسېږي
خود تر وجود مي د اشنای غمګی اول پیدا سو

یا:

د خـــوبانو مـــخ آئینه د حقیقت وه
ما بېجان که پر سینه ورته لاس و نیو

یا:

پر جلوه ئې لیري بال وهه بېجانه
د بورا په رنګ کـــوه باندي بوني

د دېوان دا لومړی برخه ئې په ۱۳۲۲ش کال د جوزا پر ۲۹مه تکمیل کړې ده. تر دغه

وخته لا د ده په شعر کي د "حیرت" تخلص نسته.

ملا عبدالمنان اخوند بې له دې چې د خپل پیر نوم واخلي، ځان د نقشبندیه طریقې پیرو بولي:

وې پاله الحـــمدلله دین محـــــــمدي لرې
ښه رو و مـــــذهب هم د نعـــمان حنفي لرې
بل بیا مبارک سنگین نسبت نقشبندي لرې
ولي ځان په شـــغل د دنیا مـــدام بندي لرې
سوځه د هوا وزر د عشق پر اور پتنگ که ځان
راسه د الله په ذکـــر سر تر پایه رنگ که ځان

دی شاعري شریف کار بولي:

**نسته توان چي قلم قلف په قلمدان کي ورته کښېږدم**
**چي بلبل ســـوم نو د گل د رخسار ذکر څنگه پرېږدم**
**پېش مشرب د بېدردی حـــال ولاړ له ما څخه جدا سو**

**د انسان دم په غلط وي شـــاعري هم شریف کار دئ**
**ترجمان عبدالمنان کاتب د خـــپل سِر و اسرار دئ**
**زه بیا داسي رنگ مجنون یم چي وجود راته لیلا سو**

دی د خپل وخت په شاعرانو کي عبدالسلام بابا "عالي شاعر" بولي او یو شعر ئې هم ورته اختصاص کړی دئ او وایي چي ده د عشق له جامه خپله برخه وړې ده.

خپل تقسیم وړونکی د عشق له جامه
ادیب عـــالي شــــاعر عبدالسلامه
پس ســــــلام و له احـــترامه
ته مه تنگـــېږه زمـــا لـــه کلامه

---

زه شــــاعر نه یم دا خپل حال وایم
غم جگـــــرخـــون یم په وینو پایم
نه شهرت مراد زمـــا، نه کمال ستایم
نه مي امــــــید سته د گـــم انعامه

ملا عبدالمنان اخوند د نورو حساسو شاعرانو په شان د کندهار له ناوړو ټولنیزو حالاتو څخه تل شاکي دئ او خپل دغه شکایت ئې پټ کړی هم نه دئ:

سینه مي ټوله خون سوه چابک ورسه رو بیاره
احــــوال و خــبر راوړه تر څو به یم بېماره
په ښار کې کـــورنی کـــړم توبه له کندهاره
عشق نه بولي زمـا دا بېگانه عالم پر څه دئ؟

دی په یوه شعر کي چي "پر ېږده پر ېږده دا وطن" نومېږي، له خپل "مسکن" څخه ډېر ناراضه ښکاري. تر دې اندازې چي وایي "قبر و کفن" لا هم نه پکښې غواړم. زه به د دغه شعر په راوړلو سره خپل بیان پر همدې ځای پای ته ورسوم او د ملا عبدالمنان اخوند د شعر ژبني خوا به که د خدای رضا وه په بله لیکنه کي وڅېړم.

**اور سو (اور) زما مسکن، پکښې سخت مي سو زیستن**
**خاین ښه پکښې چلېږي، سیاسي یا دروٰاغجن**
**پرېږده پرېږده دا وطن**

**بې د ځان صفت ولوم، بل یې شی نه دئ معلوم**
**په مجلس کي چي دی کښېني د دنیا عاشق ژاولن**
**پرېږده پرېږده دا وطن**

**یا ظاهر پر شریعت، کړي عالم ته نصیحت**
**تر پرده لاندي نه درېغ د چا پر مال کړي نه پر تن**
**پرېږده پرېږده دا وطن**

**یا یې فخر ناروا، یا یې کار رشوت و غلا**
**یا یو بل سره ښکنځي، د رذیل نه وي زده بل فن**
**پرېږده پرېږده دا وطن**

**مبذر یا عیاشي وي[1]، یا راشي یا مرتشي وي**

یا ظالم وي تر مظلوم دمخه دی کړي نالیدن
پرېږده پرېږده دا وطن

نه یې ښه انسانیت وي، نه یې عقل نه همت وي
ټوله عمر یې وي کار د ښو سړو عیب گفتن
پرېږده پرېږده دا وطن

نې تمیز نه یې حیا وي، نې بل خوښ تر ځان بالا وي
پر دنیا باندې دین پرېږدي، د نفس دوست د خدای دښمن
پرېږده پرېږده دا وطن

فقیران دي کې پیران دي، عاشقان ټول د غیران دي
د خپل ځان د ښې له پاره جهان ورکي په سوختن
پرېږده پرېږده دا وطن

څه کارونه یا سبحانه، پر دې ملک سوه نمایانه
بیا سربېره پر دې غواړې مراعت زاغ و زغن
پرېږده پرېږده دا وطن

مدینې لره به درومم، گوندي وي چې جانان مومم
خدای دې نه کړي کندهار کې دا زما قبر و کفن
پرېږده پرېږده دا وطن

---

(۱) دغه دوې کلمې ما له "گلزار سیداحمد" نومې مجموعې څخه واخیستلې. په اصل دېوان کې د دې پر ځای ډېرې سختې او غلیظې کلمې راغلې دي چې ما ئې رانقلول مناسب و نه گڼل (م. هوتک).

پای
محمدمعصوم هوتک
اوکویل ـ کاناډا
۳۱مه د جنوري ۲۰۱۰ع
***

لیکوال: م. نسیم نوري

## په ټینګ عزم سړی مقصد ته رسېږي

وایي چې: یو باجا وو، د خاورو د خوړلو سره ئې عادت درلود. هر څه چې به حکماوو او طبیبانو د خاورو خوړلو ضررونه او نقصانونه ورته ویل خو نه سو منع کېدلای. یوه ورځ یو ښه سړی باندې پېښ سو. د باچا مخ تک ژړ وچ صورت ئې وو. ده دا خپل حال ورته ووایه چې د خاورو له خوړلو سره عادي یم، په هیڅ ډول ئې نه سم پرېښوولای، هر څه کوښښ مې کړی دئ. فقیر ورته وویل:

"این عزیمةٍ من عزمات الملوک".

یعني څه سو هغه د باچهې عزم چې باچا له خپله عزمه په هیڅ توگه نه گرزي. باچا دې خبرې خورا متاثر کی او عزم ئې وکی، چې دوباره به خاوره نه خورم. نو دی په برکت د خپل عزم له دغه مرضه څخه خلاص سو او جوړ تیار سو.

نظم

چې د عزم مـــلونه وپېچې کـــوم لور ته
سست ئې نه کې که څه بیایي دي و اور ته

دا مـــعلومه ده بې عـزم و ســعي نه سي
چې رسېږي به سـړی د مقـصد کـور ته
چـــا چې گام د طلب کښـېښوی د عزم
په مقصد به سي کامــــیابه ځي به پور ته
په هر کار کې چې دي عــزم محکم نه کی
خدای خبر چې بې تر ســره کې په زور ته
چې دي عزم کړ کوم کار ته پرې ئې مه ږده
"فــتوکل علی الله"، مــه گـــوره نور ته

کـه "محـــمدنسیم" بـد وایي ته ووایــه
ورســه وگـــوره کتاب کښـــته و پورته

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# سَماع او وَجد
# په اسلامي عرفان او روښاني طریقت کښې

(۲)

**ب) وَجد:**

وَجد (د واو په زوَر او د جیم په سکوُن) په لغت کښې و خوښی، خوشالۍ، شور، جذبې، ولولې، میني، مین کېدو او ارمان تر لاسه کولو ته وایي[۳۰]؛ خوُ په عرفاني اصطلاح و هغه حالت ته ویل کیږي، چي عرفاني سالک د باطني میني او مستۍ په اثر و نځا یا د بدن د بېلابېلوُ غړو و ښوروَلوُ ته لاس واچیي[۳۱].

**د سماع او وجد مقاموُنه:**

د صوفیانوُ او عارفانوُ په نظر، سماع او وجد هر یو ځان ته خپل مقاموُنه او درجې لري:

– سماع: په سماع کښې باید یوازي د دین فکر او د حق تعالی مینه پر زړه واکمنه يي، چي هغه په خپله هم دوې درجې لري:

لومړۍ درجه د مبتدیانوُ او مریدانوُ درجه ده. په دې پړاوُ کښې و مبتدیانوُ او مریدانوُ ته بېلابېل حالتوُنه ور پېښیږي. له دې کبله باید د هغۍ په حضوُر کښې داسي خبري و نسي، چي قبوُل او رد، فراق او وصال، اوُمید او نامیندي یا داسي نور حالتوُنه پکښې نغښتي يي. د عارفانوُ په باور، که په مبتدي او مرید کښې عرفاني عقیده پیاوړې نه يي، سماع او وجد داسي سوچوُنه ور ولي، چي د کوُپر پر لور يي د ښوَییدو سَوَب گرزي. له دې وجي ستر عرفاني لارښود، ابوالحسن هجویري، ټینگار کیي، چي مبتدیان باید د سماع و غونډوُ ته پر ېښښول سي؛ ځکه داسي غونډي هغۍ ته ستر خطروُنه لري ... د ده په نظر، ځیني بې لاري د فاسقانوُ و سماع ته ورځي؛ او په تېروتني سره ادعا کیي، چي گوُندي د حق و سماع ته تللي دي. دوهمه

درجه د هغو کسانو ده، چې د فنا او نېستۍ و لوړ عرفاني مقام ته رسېدلي يي. کله چې و دغه ډَوَل عارفانو ته سماع و رسيږي، د نېستۍ او يووالي حال غلبه پر کيږي؛ او په دې توگه ځان و جهان گرده هېريږي[۳۲].

– وجد: وجد دوهم مقام دئ؛ او دا هغه حالت دئ، چې له پوهې څخه پيدا کيږي. زياتره دوه ډَوَله دئ: د حال وجد او د مکاشفې وجد. د حال وجد، څرنگه چې له نامه څخه يې ښکاري، هغه وجد دئ چې په وجوّد کښې د ېږي، غم، غوښتني، شوق، مينې او داسې نورو صفتو په څېر مستي او ولولې راولي. د مکاشفې په وجد کښې د صوفيانو او عارفانو له زړو څخه د اسرارو پردې پورته کيږي[۳۳]. د اسلامي تصوّف او عرفان علمبردار– مصرى ذوالنون وايي: «وجد هغه حالت دئ، چې له خداى سره د ډېرې مينې او اخلاص له مخې پيدا کيږي. لکه څنگه چې د قرآن کريم د رعد د سورې د اته ويشتم ايات (۱۳: ۲۸) په يوه برخه (أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ) او د زمر د سورې د درويشتم ايات (۳۹: ۲۳) په يوه برخه (تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ) کښې راغلي دي. ځينو عارفانو وجد د پردې ايسته کېدل، د محبوب ليدل، د غيب کتل او د مقصوّد مؤندل بللي دي. د اسلامي تصوّف او عرفان ځيني ښېخان؛ لکه مصرى ذوالنون، ابو سعيد خراز، ابوالحسن نوّري او ابوبکر شبلي د مينې او وجد په حالت کښې له دوّنيا څخه تللي دي[۳۴].

## ۲) سماع او وجد په روښاني طريقت کښې:

په روښاني طريقت کښې هم سماع او وجد ته په خورا لوړه سترگه کتل سوي دي. د دې عرفاني لارې متفکر لاربنود– بايزيد روښان انصاري اورمړ (۹۳۱ – ۹۸۰ هـ.ق) هم د سماع او وجد په باره کښې ډېرې ژورې او ارزښتناکې نظريې وړاندې کړې دي، چې په ځينو اړخو کښې د نورو عرفاني متفکرانو له نظريو څخه بېلتيا او ځانگړتيا لري. د دې خبرې مانا دا ده، چې پير روښان او پيروانو يې ځينو نورو عرفاني– فلسفي مسألو غوّندې د دې مسألې په باره کښې هم د پخوانييو عارفانو نظريې او مفکورې په پټو سترگو نه دي اخيستې، بلکې د اسلامي عرفان د بېلو منابعو او نوي فکر په رڼا کښې پر هغو ډېر څه ور زيات کړي دي.

پير روښان، ساز او سروّد د انساني مينې مرستندوى بللي دي: «المزامير كان نصرا حب الانسان»[۳۵]. دى د اواز او ترانې د حُرمت، اِباحت، حلالښت او سپېڅلتيا بېلابېل اړخونه داسې سره بېليي: «صوت المزامير حرام على اهل الدنيا و مباح على اهل الآخرة و حلال على العارف الواجد و الطاهر على العارف السامع» ياني د مزاميرو[۳۶] ساز او اواز پر دوّنيا پالوّنکو حرام، پر آخرت پالوّنکو روا، و واجد عارف ته حلال او سامع عارف (هغه عارف چې د پير روښان د عرفاني نظريو پر اساس د قربت و مقام ته رسېدلئ يي) ته پاک او سپېڅلئ دئ. بل ځاى د ساز و اواز د بدعت او اِباحت په اړه داسې وايي: «المزامير بدعة على اهل الدنيا و مباح على السامع». ياني مزامير و دوّنياپالوّ ته بدعت، خو سامع ته روا دئ.

د پیر روښان د عرفاني دوکتورینو له مخي سامع و هغه عارف ته ویل کیږي، چي د هر اواز په تسبې/ تسبیې (تسبیح) یې سر خلاص یې؛ او په هر ږغ کښي د یوه ذات د ثنا او صفت ترانې آروي. د روښاني سیر او سلوک لارښود، په یوه بل بیان کښي د اواز د زیان او گټې په تړاو داسي بیان لري: «المزامیر خسران علی اهل الدنیا و مضرة علی اهل البغی و نافع علی العارف و موافق مع السماع» یاني مزامیر و دونیا پالونکي شخص ته زیان، بېلاري او سرغړاند ته ضررناک، و عارف ته گټور او له سماع سره موافق دي[۳۷].

د «حالنامې» د روایت له مخي، یوه شپه پیر روښان خوب ولیدئ، چي د ځلوېښتو درویشانو یوه ډله یې له مزامیرو (د ساز او اواز له بېلابېلو آلاتو او وسایلو لکه دریې، رباب، څلور تاره او داسي نورو) سره و کور ته ورځي؛ او داسي پوښتنه ځني کیي: «اې بایزیده! ځیني عالمان وایي، چي ساز ږغول او سماع دواړه حرام دي، ته په دې خبره کښي څه وایې؟!» بایزید روښان په جواب کښي داسي ورته و ویل: «ما په قدسي حدیث کښي لیدلي دي، چي د سازو آروېدل پر درې ډوله دي: حرام، مباح او حلال (السماع علی ثلاثة انواع: حرام و مباح و حلال). و روسته یې د سماع هر ډول په داسي ټکو ورته تشریح او بیان کئ: «و من سمع الصوت عن شئ لمحبة الدنیا سمع حرام و من سمع الصوت عن کل الصوت بمحبة الجنة فقد سمع المباح و من سمع الصوت عن کل الصوت بمحبة الله فقد سمع حلال.» یاني څوک چي د هر شي اواز د دونیا د میني دپاره واروي، داسي آروېدل حرام دي؛ څوک چي د هر شي ږغ د جنت د میني دپاره آروي، داسي آروېدل مباح یا روا دي؛ او څوک چي هر ږغ د خدای د میني په خاطر آروي، داسي آروېدل حلال دي. وروسته درویشانو له پیر روښان څخه د سازو ږغولو اجازه وغوښتله، خو پیر روښان په دې شرط اجازه ورکړه، چي د سازو ږغول یې باید یوازي د خدایي شور او شوق له مخي یې. د حالنامې د روایت له مخي، درویشانو سازونه و ږغول، خو اواز یې نه پېژندئ؛ نه پوهېدل چي سازونه څه ته وایې؛ او د هر ساز په پردو کښي د چا ږغونه او سرودونه ازانگي کیي؛ په دې خاطر نو پیر روښان د قرآن کریم د بقرې د سورت د اتلسم ایات (۲: ۱۸) له حُکم سره سم، داسي درویشان کاڼه، گونگي او ړانده و بلل[۳۸].

علي محمد مخلص (تر ۱۰۶۹ هـ ق کال پوري په یقین سره ژوندی) په «حالنامه» کښي د پیر روښان د روحاني وجد او نڅا یوه کیسه هم راوړې ده. دی لیکي، چي بایزید روښان یوه روځ د همزولو او ځوانانو په هغه باندار کښي د لبونو په څېر خوشالي او نڅا وکړه، چي پلار او نور خپلوان یې هم ناست وه. په داسي حال کښي، چي پلار یې د اواز او نڅا سخت مخالف و، خو بایزید روښان تر ډېرو کوښښو وروسته، د پلار د اجازې په تر لاسه کولو سره، د رسول الله (ص) د دې مبارک حدیث: «لا یکمل ایمان احد حتی یظن الناس انه مجنون»[۳۹] په پیروی د باندار و برخه والو ته د ځان داسي انځور وړاندي کئ، چي د

دینداري او روحانیت هیڅ اثر او نښانه پکښې نه وه[۴۰].

د اواز، سرؤد، سماع، سمع، سامع، قریب او بعید د ښلابښلؤ اړخو په اړه د روښاني طریقت نظریو او مفکورو د دې ادبي – عرفاني مکتب د زیاترؤ مخکښانؤ او پیروانؤ په اثارؤ کښې رینښې ځغلولي دي. په دې ډله کښې د روښاني سیر و سلوک د مبتکرؤ او متفکرؤ شاعرانؤ، میرزا خان انصاري اورمړ او علي محمد مُخلِص، عرفاني – فلسفي نظریې د استادانه انځور ګرۍ، لفظي رنګینۍ، لوړي خیال پردازۍ او فکري ژوراندېشۍ له مخې تر نورؤ په تول ډېري درنې خېژي. د لیکني په دې برخه کښې د اواز، سرؤد، سماع، سمع، سامع، قریب او بعید د پېژندني او شنني دپاره د روښانیانؤ د ادبي – عرفاني غوړځنګ د ځینؤ نؤمالییو شاعرانؤ د کلام بولګې وړاندي کوؤ:

میرزا خان انصاري (په ۱۰۴۰هـق کښې د دکن په جنګ کښې مړ) د اواز د منشاء او مبداء په اړه په یوه غزله کښې داسي وایي:

آواز واړه د وهـــاب دئ
که د رحـــم یا عـــتاب دئ
په [پر] هر لوري چه فهم وکړم
د مولا چـــنګ و رباب دئ[۴۱]

بل ځای د وهاب له لوري راغلي اواز ته د قریبانؤ او واصلانؤ د لاربښوؤنکي وسیلې په سترګه ګوري:

وهر چـــا وته ناره کاندي په زوره
د نېکبختؤ رهنمای دغه آواز دئ[۴۲]

*** *** ***

علي محمد مخلص، د روښاني ادب او طریقت ځلانده ستوری، د اواز په عرفاني – فلسفي بیان کښې داسي وایي:

ښه آواز د شاه رؤیبار دئ په سرؤد کښې
دل زنده عاشق له پښو پایو بې راګه[۴۳]

مخلص، په یوه غزله کښې د هغه اسماني اواز ښېمثله ښکلا تصویریي، چي د مخلوقاتؤ په غوږو کښې په څو ډَوله ازانګې کیي:

خـــوش آواز یې د آسمان لویـه بر بـطه!
هـــر اشـــیا در باندي تار ګورم حطـطه
لوی آسمان دئ احاطه عالَم په میان کښې
دا محـــیط فلک د هر اشیا محـیطه[۴۴]

بل ځای د قرآني کیسي پر بنسټ، د حضرت داؤد (ع) د ښه اواز و معجزې ته په ګوتي نیولؤ سره د اواز داسي ستاینه کیي:

د آواز صفت به وکښم ښـــــه اواز دئ دلفرېبـه
آهو ځان کښېږدي و تېغ ته د احسن اصوات له زېبه
دداؤد له ښه آوازه چه آغـــــاز ئې کړئ له نیـازه
غرونو، ونو به جُنبش که، حـیوان ډېر مړه بې حسېبه[۴۵]

*** *** ***

د اواز او سرؤد تر منځ عرفاني – فلسفي اړیکي د میرزا خان انصاري په یوه بیت کښې داسي انځور سوئ دئ:

دا فلک له کـه سـرؤد آشـــیاء تارؤنه
څه عجب ښېمثل آواز په زېر و بم کا[۴۶]

د روښاني سیر و سلوک پیروان هر اواز او هره نغمه د هغه ښېساري بحر کرشمه ګني، چي پر ټولؤ کایناتؤ چارچاپېر دئ؛ او د هر مخلؤق هستي او نیستي ور سره تړلې ده. د دغه عرفاني طریقت د پیروانؤ په باور د هر چا په غوږو کښې، چي د دې ښېمثله بحر خوږو او هستۍ بخښوؤنکؤ نغمو ځای نیولئ یي، هغه د

مخلوقاتو او موجوداتو په هر رغ او هره نغمه کښې يوازې د خپل محبوب او معبود اواز آروي. مخلص په دې باره کښې داسې ژور بيان لري:

چــه په غــوږ ئې د بېمثله دريا غږ دئ
په معنى کښې دا سامع تښتن د غوږ دئ
قــــريبان د حق آواز آروي له هر څــه
کر بعيد نن ناآشـنا د شاه په غـږ دئ[47]

*** *** ***

ميرزا خان انصاري په دې اړه داسې وايي:

سامعان ئې د رموز په معنى پوه شوه
چه اشيا د حق ثنا په خپل قانون کا
***
کم دليل ئې نه آروي له لــــري
د خپل راز خبره واړه په مقرون کا
***
سامعان چه د آواز په رموز پوه شــول
همېشه د زړه په غوږ و آروېده که[48]

*** *** ***

مخلص، د ساز او سرود سماع فقط وهغه چا ته جايزه بولي، چې د هر شي له رغه د هو تسبې واروي. د روښاني طريقت د اصولو له مخې، د عرفاني مجاهدو دا پړاو د قربت مقام بلل کيږي، چې هغه ته په رسېدو سره قريب عارف نه يوازې د بېساري بحر هر اواز د زړه په غوږ و آروي، بلکې د هر آواز په تسپو (تسبيحو) هم ښه پوهېږي:

هر آواز د هــــــو تسبيح وايي مخلصه!
چه د زړه فهم پرې نه لــري اتــروش دئ
که په غوږ کښې دي ځاى ونيسي د يار غږ
نور به نه آروې په ملــک کښې د اغيار غږ
که شهباز پر زېر و بم د تـــــار وبلــوسې!
تر هر تار پورې ظاهر شي د دلــــــدار غږ
که سبب د تار شهباز دې منــظـور نه وي
بې واسطه به مدام آروې د نگار غـــــږ
***
چه د هر څـــيز له آوازه تســـبيح آروي
د سرود سماع پرده باندې مباح شي[49]

*** *** ***

د روښاني طريقت بل پياوړى شاعر، دولت الله لوانى (تر ۱۰۶۹ هـ ق کال پورې په يقيني توگه ژوندى)، دا عرفاني مسأله په دې ډول بيانيي:

د قربت ذکر مقام د سامعان دئ
پوهېده په تسبيحات په آوازونه

*** *** ***

واصل روښانى (تر ۱۰۵۸ هـ ق کال پورې په يقين سره ژوندى) د اواز د تسپو پېژندنه او پالنه له دې سره د سرود بېلونکې نخښه بولي:

چې يې خوښ [هوښ] د آواز په تسبيح نه وي
د ســـرود تفاوت څـــه دى تر دق د په[50]

*** *** ***

ميرزا خان انصاري، په يوه غزله کښې د قريب عارف د اواز پېژندني او سرود آروېدو د لذت په اړه خبرې کيي، چې وروسته بيا د وصلت ومقام ته لار پرانيزي. وصلت د روښاني دوکتورينو پر اساس، هغه مقام دئ چې واصِل عارف هورې له خپل اختيار او ارادې څخه لاس اخلي؛ او هر څه د پروردگار په هستۍ سر ته رسيي:

په هر صــوت قريب پوهېږي
او ســروږ ئې زيات لـــذت کا

په آواز چې و پوهېږي
ترو منزل دي د وصلت کا(۵۱)

یو بل ځای د قربت و لوړ عرفاني مقام ته رسېدل د هر قام (په حقیقت کښې د هر مخلوق) ژبې د پېژندنې ضامن ګڼي:

یو په یو به د هر قام په ژبه پوه شې!
که د زړه غوږ دې شنوا کړ مبصره(۵۲)

*** *** ***

مخلص، و هغه چا ته د ناپوه او جاهل په سترګه ګوري، چې د کایناتو ښکلي او روح پروره اوازونه د شپېلۍ، رباب، چنګ، بربط او داسې نورو مزامیرو زېرنده بولي. د ده په نظر، ټولې ښکلې نغمې او ترانې، د هغه بېمثله اسماني اواز څپې دي، چې د کایناتو په ګوټ ګوټ کښې په بېلابېلو بڼو او ډولو انعکاس مومي. دا زړه وړونکې ږغونه کله د تمبور (تنبور)، رباب، شپېلۍ، سورنا یا نورو ساز ږغوونکو آلاتو له پردو، کله د باد له سوړهار، کله د اوبو له شوړهار او کله د مرغانو او نورو ژوو له اوازو څخه زموږ تر غوږو را رسیږي. په بله وینا، د ده په نېز په ټولو کایناتو کښې فقط یو ږغ دئ، چې په بېلو طرزو او ډولو انعکاس مومي. د قربت ومقام ته رسېدلئ عارف په هر ښکلي او روح بخښوونکي اواز کښې یوازې د خپل محبوب ږغ آروي. له دې سوبه نو مجبور نه دئ، چې د ښکلو او مستو اوازو د لذت دپاره یوازې د ساز او سرود و آروېدو ته مخه کي. د مخلص په عارفانه کلام کښې د دې نظرېې بیان داسې راغلئ دئ:

چه نایي ئې و نظر ته منظور نه وي
له مزماره به ګڼي نادان حمار غږ
نائي یو شپېلۍ ئې دېرې دي مخلصه!
تر هر نې کاندي ښکاره په څو اطوار غږ

***

د یوه بحره غوټې ئې څرګندېږي
له یوه بحره آواز په څو انګاز شي
د زړه غوږ که دې شنوا شي و به واروې!
په هر نې کښې د یوه نائي اواز شي
چه آواز له غیر نه آروې په غوږو
هغه کس ګورم مَیَن پر سور و ساز شي
چه ئې فهم په تسبیح د هر آواز وي
و عارف ته هر آواز بانګ نماز شي(۵۳)

په یوه بله ښایسته غزله کښې بیا هم د دغې عرفاني – فلسفي نظرېې په څېړنه کښې وایي:

بعیدان ګڼي آواز له تار وخیزي
قریبان له بې مثلیه آروي طیطه
آواز ګل د بېمثلۍ له بحره پاڅي
که سبب ئې شه د څیز جنبش ربطه
په دا سِرّ به مُقَرب سامع پوهېږي
چه نظر ئې له سببه دئ فرطه(۵۴)

*** *** ***

دا عرفاني نظریه د میرزا خان انصاري په یوه بیت کښې داسې راغلې ده:

هیڅ آواز له څیزه نه شي بې جنبشه
چه څه کوږي دا دریا ئې راست و خم کا(۵۵)

میرزا خان په یو بل ځای کښې د سامع قریبانو د سماع په اړه وایي:

سامعان چه سماع کاندي له قبوزه
د ساقي پیالې خبر کړل له رموزه

وروسته د بې خبرو بعیدانو د سماع داسې بیان کیي:

هیڅ له څانه خبر نه دي او غیب وائي
له هر صوت سره سماع کا بې اسلوبه

میرزا خان په یوه بله غزله کښې د اواز له ستر نعمت څخه د غافلو او کڼو د محرومیت و مسألې ته داسي کتنه کیي:

نابینا د ښایسته له حاله څه زده
د آواز معنی به څه غوارې له کره[56]

دا عرفاني مسأله د مخلص په کلام کښې داسي بیان سوې ده:

کر بعید د ښـــه آواز له قـــدره څـــه زده
د آواز په لوی نعمت دي سامعان خوښ[57]

مخلص، په یوه غزله کښې د عارفانو د راحت او لذت په اړه خبري کیي، چي په هغو کښې اول د دیدار راحت او بیا د ښه آواز لذت دئ:

د عاشق راحت دیـــدار په دواړه کـــونه
بې دیداره بل راحت بانـــدي تنور وي
په بهښت که لذت ډېر لـــونه موجود دئ
په دیدار پسي د ښـــــه آواز سرور وي
د عـــارف دیدار راحت یا ښـــه آواز دئ
د زاهد راحت شهوت، میوه، انگـــور وي
مستغني شي د دوو کـــونو له لـــذته
چه منظور ئې د مولی بیمثله نور وي[58]

مخلص، د یار د دیدن په هیله عرفاني سالکان د سماع او وَجد و خوښۍ ته وربولي:

نن د یار په دیدن خوښ، خوشحال شه ناڅه!
له هوسه کړه سماع، قـــــوال شه ناڅه!
ته خیال د بل څیز مه پربږده پـــه زړه کښـي
که عاشق بې درست د یار په خیال شه نـاڅه!

***

چه فـــارغ شي د دُنیا له کاروبـــاره
د دُنیا اهل مشغول په لهو، ناچ شي[59]

مخلص، په یوه غزله کښې و هغه ساز او اواز ته د لهو و لعب په سترگه گوري، چي د حق تعالی له ذکر و فکره بې خبره دۆنیاوال یې یوازي د سیل او ساتیري په مخسدآروي یا گوري. له دې جهته یې په «حالنامه» کښې د ساز او اواز په باره کښې د عرفاني شبخانو دا وینا کښلې ده: « اې گرانه! لویانو او مشرانو ویلي دي: هر څوک چي د خدای دپاره سازۆنه وړغیبي او سندرې و وایي، تر هغه چاښه دئ، چي د الله تعالی بې حضۆره قرآن لولي:

من آن نیم که حلال و حرام از هم نشناسم
شراب با تو حلال است و آب بی تو حرام »[60]

انسان باید په هر کار، په تیره بیا په عبادتو کښې یوازي او یوازي د حق تعالی رضا او خوښي په پام کښې و ساتي؛ زړه د ماسوای الله له هر ډَوَل اغیزې څخه و ژغوري، کنې د شِرک په داسي لو گوٚنا به اخته یي، چي د بخښني تولي دروازې یې پر مخ تړلي دي.

زموږ په عصر کښې ساز، اواز، نڅا او داسي نور ظریف هۆنرۆنه، د بشري ټولنۆ پر هر ډَوَل دیني او مذهبي بندیزو، فکري مخالفتو او بېلابېلو عرفاني شرطو سربېره، د ژوندانه له انکار نه منوٚنکو واقعیتو او نه بېلېدوٚنکو اړتیاوٚو څخه گڼل کیږي. څوک چي د انسان، حیوان او حتا نبات پر ژوند د موسیقی له رغنده او گټوري اغیزې څخه سترگي پټيي، په حقیقت کښې په دوو گوٚتوٚ د لمر پټولوٚ ناکامه هڅه کیي، چي بې شرمندگۍ او ناکامۍ بله هیڅ نتیجه نه لري. ښېله شکه په دې خبره کښې هیڅ ویل نسته، چي موسیقي باید همېشه انساني او عرفاني توَمنه ولري؛ او له انساني

روح سره د خوشالی، تمرکز او بالاخره حقیقت مؤندني په لار کښي مرسته او کومک وکي.

**لمنلیکونه:**


۱ حسن عمید، فرهنگ عمید،۳ جلد، چاپ دوم. (تهران: مؤسسهٔ انتشارات امیر کبیر، ۱۳۶۵) ۲: ۱۴۵۷؛

Hans Wehr, A Dictionary of Modern Written Arabic, Ed. J. Milton Cowman. ۳rd. ed. (Beirut: Librairi du Liban, ۱۹۸۰) ۴۳۰.

۲ دکتر اسماعیل حاکمی، سماع در تصوُف، چاپ چهارم (تهران: دانشگاه تهران،۱۳۷۱) ۱.

۳ حاکمی ۳۶.

۴ حاکمی ۶ – ۷.

۵ حاکمی ۵.

۶ حاکمی ۴.

۷ دکتر پوران شجیعی، جهانبینی عطار، چاپ اول (ایران: موسسهٔ نشر ویرایش،۱۳۷۳) ۳۱۸.

۸ حاکمی ۲۴.

۹ حاکمی ۱۷.

۱۰ حاکمی ۱۱.

۱۱ محمد داراشکوه، سکینة الاولیاء، بکوشش تاراچند و سید محمد رضا جلالی نائینی (نشر کردهٔ مؤسسهٔ مطبوعاتی علمی، بدون محل و تاریخ چاپ) ۷۱.

۱۲ حاکمی ۱۶.

۱۳ حاکمی ۳۷ – ۳۸.

۱۴ ابوحامد غزالی، کیمیای سعادت، به تصحیح احمد آرام، چاپ هفتم ( تهران: کتابخانهٔ مرکزی، ۲۵۳۵/ ۱۹۷۷) ۳۸۱ – ۳۸۸.

۱۵ مولانا عبدالرحمان جامی، نفحات الانس، ترجمهٔ حضرت شمس بریلوی (نئے دهلی: دانش پبلشنگ کمپنی، ۱۹۸۸) ۷۰۱ – ۷۰۳.

۱۶ مولانا جلال الدین بلخی رومی، دورهٔ کامل مثنوی معنوی، بسعی و اهتمام و تصحیح رینولد نیکلسون، چاپ دوم (تهران: امیر کبیر، ۱۳۵۳) ۱.

۱۷ حاکمی صفحهٔ دوم مقدمه و صفحهٔ ۱۲۷ متن کتاب.

۱۸ حاکمی ۵.

۱۹ حاکمی ۸.

۲۰ حاکمی صفحهٔ دوم مقدمه.

۲۱ نیرومند محقق ۵۶.

۲۲ شیخ عزیزالدین نسفی، الانسان الکامل، با تصحیح و مقدمهٔ فرانسوی ماریژان موله (تهران: کتابخانهٔ طهوری، ۱۳۶۲ / ۱۹۸۳) ۱۲۶ – ۱۲۷.

۲۳ حاکمی ۳۳.

۲۴ Imām Bukhāri, Sahih Al – Bukhāri (Arabic – English), ۹ Vols. trans. Dr Muhammad Muhsin Khān (Beirut: Dar Al Arabia, ۱۹۸۵) ۷: ۱۶۳.

۲۵ حاکمی ۳۷.

۲٦ Imām Bukhāri ۲: ۷۰, ۷۲.

۲۷ حاکمی ۱۱؛ شیخ ابوالحسن سید علی هجویری، کشف المحجوُب، ترجمهٔ سیدفاروق القادری ایم. اې. (لاهور: فرید بوک سټال، ۱۹۸۹) ۵۴۱.

۲۸ دارا شکوه، سکینة الاولیاء ۷۱.

۲۹ حاکمی ۲۹.

۳۰ عمید۳: ۲۴۵۰؛ Wehr ۱۰۵۰

۳۱ دارا شکوه، سکینة الاولیاء ۷۱.

۳۲ حاکمی ۲۵.

۳۳ حاکمی ۲۶.

۳۴ دارا شکوه، سکینة الاولیاء ۷۱.

۳۵ Hussan Zia Khan, <u>The Pathans of Jullender</u> (Lahore: Makaba-tul-Islamia, ۱۹۹٦) ۲۰.

۳۶ مزامیر (د مزمار جمع) په اسلامي عرفان کښې په دغو درو ماناوو (خاصتاً لومړیو دوو ماناوو) ډېر کاریږي: ۱) د مطربانو د ساز آلې (شپېلۍ او درېې)، په تېره بیا شپېلۍ. ۲) ښه اواز او سرود. ۳) د دوعاوو ډولونه؛ لکه د حضرت داوّد (ع) مزامیر (زبور).

۳۷ علی محمد مخلص، حالنامهٔ بایزید روښان، نقل از سرمحقق دوست شینواری و معاون سر محقق نورالله اولسپال، چاپ گستتنری (کابل: پښتو ټولنه، مرکز زبانها و ادبیات، اکادیمی علوم افغانستان، ۱۳۶۴) ۶۷.

۳۸ مخلص، حالنامهٔ بایزید روښان ۱۳۱ – ۱۳۳.

۳۹ ژباړه: د چا ایمان تر هغه مهاله نه بشپړېږي، چي خلګ د لېوني ګومان پر و نه کي.

۴۰ مخلص، حالنامهٔ بایزید روښان ۱۵ – ۱۶.

۴۱ میرزا خان انصاري، دیوان، B.M.Or.۴۲۲۸-Foll.۱۱۸ ، خطي نوخسه، لندن: برټیش کتابتون.

۴۲ انصاري، دیوان، B.M.Or.۴۲۲۸-Foll.۱۱۸، خطي نوخسه...

۴۳ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶، خطي نوخسه، لندن: برټیش کتابتون.

۴۴ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶ ، خطي نوخسه...

۴۵ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶ ، خطي نوخسه...

۴۶ انصاري. دیوان. سموَنه او څېړنه د ډاکټر پرویز مهجور خېشکي. پېښور: پښتو اکېډیمي، پېښور یونیوَرسیټي، ۲۰۰۴.

۴۷ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶ ، خطي نوخسه...

۴۸ انصاري. دیوان. سموَنه او څېړنه د ډاکټر پرویز مهجور خېشکي...

۴۹ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶ ، خطي نوخسه، لندن: برټیش کتابتون.

۵۰ واصل روښاني، دیوان، د هند د رامپور د رضا لایبررۍ د واحدي خطي نسخې له مخې. د زلمي هیوادمل له سریزي، سمون، څرګندونو، لمنو او ښلونو سره. کابل: د افغانستان د علومو اکاډیمي، ۱۳۶۵.

۵۱ انصاري. دیوان. سموَنه او څېړنه د ډاکټر پرویز مهجور خېشکي...

۵۲ انصاري، دیوان، B.M.Or.۴۲۲۸-Foll.۱۱۸، خطي نوخسه...

۵۳ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶ ، خطي نوخسه...

۵۴ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶، خطي نوخسه...

۵۵ انصاري. دیوان. سموَنه او څېړنه د ډاکټر پرویز مهجور خېشکي...

۵۶ انصاري، دیوان، B.M.Or.۴۲۲۸-Foll.۱۱۸، خطي نوخسه...

۵۷ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶، خطي نوخسه...

۵۸ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶، خطي نوخسه...

۵۹ مخلص، دیوان، Or۶۷۵۶، خطي نوخسه...

۶۰ مخلص، حالنامهٔ بایزید روښان ۴۱۱.



څېړندوی عبدالغفور لېوال/کابل

# اسطوره او ادبیات

ځلرمه برخه



## هندي اسطورې

ستر هندوستان د اسطورو هیواد دئ، په دغه ګڼتوکمه، ګڼفرهنګنه، ګڼژبي، لرغوني او هنرپروره هیواد کې اسطورې له مذهبونو، ادبیاتو، هنرونو، اخلاقي ښوونو، عرفان، سیاست او تاریخ سره هومره ګډې، رنګارنګي او پېچلي ریښې او ځانګې لري، چې په ټولو ئې پوهېدل خورا ډېر وخت او کار غواړي. یوناني اسطورو د فکر او پوهې د راویښولو توانمندي درلودله، خو هندي اسطورو هنر او عرفان ته وده ورکړه. په هند کې اسطورو موسیقۍ، نڅا او تجسمي هنرونو ته لار هواره کړه او د انسانانو روحي نړۍ ته ئې د سیر و سلوک لارې پرې روښانه کړې. هندي رب النوع شېوا ته ناتاراجا (د نڅا پاچا) هم وايي، ویل کېږي هغه نڅل او نړۍ خوځېده او کله چې غوښتنه ورځخه وشوه، چې نڅا ودروي، هغه ودرېده او د نړۍ د ورانېدلو تر نېټې پورې ئې نڅا ودروله. موسیقي او ترنم، د ښځې لوړ مقام، د پلار و مور درناوی، د جګړو اصول،

عاطفه، ژویو ته زیان نه اړول، له ویني بهولو څخه کرکه او خاوند ته د لمانځني تر بریده درناوی او داسي نور په سلګونو اخلاقي امرونه له اسطورو څخه په میراث پاته دي. د هندي اسطورو په اړه له دې لنډي مقدمې څخه موخه دا ده چي هند له هغو ګوته په شمېر ټولنو څخه دئ، چي لا هم پکښي د اسطورو معنوي حکومت چلېږي او له هغو څخه راپاته هنري ـ ښکلاییز ( Aesthetic) ارزښتونه لا ژوندي دي او د دغه ستر هیواد د فرهنګي میراث یوه لویه برخه جوړوي. د هندوستان لویه وچه د یوه داسي پراخ فرهنګي مدنیت میراث له ځانه سره لري، چي په سلګونو حتی په زرګونو په زړه پوري اسطورې ئې د پېژندلو او څېړلو وړدي، خو موږ به دلته یوازي هاغه مشهوري اسطورې لنډي وپېژنو چي اوس ورته د بشریت د ګډ ادبي میراث په سترګه هم کتل کېږي:

**۱- راماین، رامایانا** (Ramayana)

راماین د سانسکریت ژبي ترټولو لرغونې او حتی لومړنۍ منظومه حماسه بلل کېږي، په سانسکریت ادب کي دې منظومې ته (ادي کاویه Adikavya) هم ویل شوي، چي مانا ئې ده لومړنۍ منظومه (راماین: ۱۴ مخ).

دا منظومه د خپل لرغونتوب، سبک او منځپانګي له برکته د هندوانو په مقدسو کتابونو کي شمارل کېږي. د دې منظومې نوم له دوو (رام او اینم) څخه جوړ شوی دئ، چي مانا ئې ده د رام کور، خو په حقیقت کي د هندوستاني اتل رام، چي بشپړ انسان (Uttamo Purusha) بلل کېده (راماین: ۱۵) ژوند پېښي او کیسې دي، چي د هندیانو له پاره سپېڅلي ګڼل کېږي.

د راماین شاعر (والمیکي Valmiki) دئ چي فکر کېږي له رام سره هممهاله ژوندی وو، داسي روایت هم شته، چي والمیکي به د خپلي منظومې ځیني برخي د رام په دربار کي لوستلې او د رام زامنو به ورسره په ترنم کي غبرګولې، د دې منظومې اورېدلو به رام ته خوښي وربخښله. په سانسکریت کي رامایین په یوه نوي بحر (اشلوک) کي چي والمیکي رامنځته کړی وو لیکل شوی دئ. د رامایین د لیکلو نېټه سمه نه ده معلومه، ځیني څېړونکي فکر کوي، چي دا منظومه د ۵۰۰او ۲۰۰ مخزېږدي کلونو ترمنځ لیکل شوې ده. (رامایین: ۱۶).

خو ځیني بیا فکر کوي، چي تر دې زړه ده، پر دې هم اختلاف دئ، چي مهابهاراتا مخکي لیکل شوې ده که رامایین.

دغه منظومه څلیرویشت زره بیتونه لري او په لاندي اوو برخو کي لیکل شوې ده:

۱. بال کاند: د رام د ماشومتوب دوره.
۲. ایودهیاکاند: د رام د تبعید دوره.
۳. ارینه کاند: په ځنګلونو کي د رام دژوند دوره.
۴. کشکندها کاند: په کشکندها کي د رام د تم کېدلو دروه.
۵. سندرکاند: لنکا ته د هنومان د تللو کیسه.
٦. یوده کاند: د جګړې دوره.
۷. اوترکاند: د رام د ژوند دپای کلونه، (راماین: ۱۸).

راماین د نورو هندي مذهبي متونو لکه وېدونه (وادونه)، او پانیشادونه، مهابهاراتا او اتلس ګونه پورانونه په څېر ځانګړي تولنیز پوړ ته نه، بلکي ټولو خلکو ته د لوستلو او خوند اخیستلو وړ منظومه ده ځکه خو دا اسطوره یوازي مذهبي نه، بلکي ادبي او هنري ارزښت هم لري.

دراماین د کیسي لنډیز:

د هندوستان یوه پاچا داشاراتا «دَشَرَتَهه») دري مېرمني درلودلې، خو بیا ئې هم ماشوم نه وو، پاچا خدای ته زاري وکړه او په پایله کي له خپلو مېرمنو څخه د څلورو ماشومانو خاوند شو. مشر زوی ئې رام نومېده، چي پر پلار ډېر ګران وو او خپل ځای ناستی ئې هم ټاکلی و، رام (رامچند) د سپوږمۍ په څېر ځېره درلودله او تر ټولو ښه او نجیب ځوان وو، چي ارباب الانواعو د سړي خوړونکیو دېوانو د ځپلو له پاره ځمکي ته رااستولی وو. رام یوه ورځ له خپلو ورونو سره یو ځای د جنک (جنکا، جاناکا) پاچا په دربار کي مېلمه وو، هلته د پاچا له لوري یوه مسابقه جوړه شوې وه، چي که هر چا د یوې ستري لېندۍ په مرسته (چي ان سترو پهلوانانو او ارباب الانواعو هم نه شوه کارولی) غشی وویشته نو د دې مسابقې ګټونکی به وي، رام راوړاندي شو او ستره لېندۍ ئې راکاږله او غشی ئې وویشت. جنک پاچا خپله ښکلې لور (سیتا) رام ته ورپه نامه کړه او په شاندارو مراسمو کي رام او سیتا سره واده وکړ، د رام او سیتا ژوند په خوشالۍ او مینه د داشاراتا په دربار کي تېرېده، چي یو مهال د رام پلار د زړ بوډۍ له امله پرېکړه وکړه، چي رام خپل رسمي ځایناستی وټاکي، خو ناځاپه ور په یاد شوه ، چي ده له خپلي یوې ځواني مېرمني سره وعده کړې وه چي خپل ځایناستی به د هغې په خوښه ټاکي نو د خپلي مېرمني له مخالفت سره مخامخ شو. خبره د نورو شاهزیو ترمنځ ولوېده او کرکېچ پېښ شو، رام د شخړي پلوي نه وو او ځکه ئې دا ومنله چي له خپلي ښکلي او خوږې

مېرمني (سيتا) سره کور پرېږدي او ځان ځنګلونو ته تبعيد کړي، په دې توګه پاچاهي د هغه مېرېزي ورور (بهارت، بهرت) ته پاته شوه، که څه هم بهارت دا منلې وه، چي د پاچاهۍ حقدار رام دئ، خو رام د شخړي د مخنيوي له پاره له خپلي مېرمني او کشر ورور (لچهمن، لکشمن) سره مخ پر ځنګل روان شو. رام په ليري ځنګلونو کي له خپل مهربان ورور او ښکلي مېرمني سره يونوی ژوند پيل کړ او هلته په رياضت او عبادت بوخت شو، په ځنګله کي نور مرتاضان او د دنيا تارکان هم ول، چي د رياضت په مرسته ئې ځان معنوي عروج ته رساوه، خو د (شر) واکمن شيطانان او دېوان هم کم نه ول، چي له دوی سره دوښمني وکړي او د دوی د ژوند مزاحم شي. رام پرېکړه وکړه، چي د اهريمنانو او دېوانو په وړاندې جګړه پيل کړي او په دې جګړه کي ئې يوه لويه برخه دېوان ووژل. د دېوانو مشر (راون، راونا) د کسات لوړه وکړه او خپل يوه کس ته ئې امر وکړ، چي د يوې ښکلي هوسۍ په بڼه ځان د رام د اوسېدو ځای ته ورسوي.

رام چي ښکلې هوسۍ وليدله، نو په ښکار پسې ئې راووت او په بېخبرۍ کي ډېر ليري ولاړ، سيتا او د رام ورور چې د ده ځنډ وليده نو پرېشان شول، سيتا له خپل لېوره لکشمن څخه هيله وکړه چي په رام پسي ووځي، همداسي وشول او سيتا يوازي پاته شوه. د دېوانو مشر (راون) چي د همدې شېبې په تمه وو، د يوه مرتاض په بڼه د رام کوډلي ته راغی او سيتا ئې له ځان سره د (لنکا، لانکا) ټاپو ته وتښتوله. رام او لکشمن چي کور ته راستانه شول، څه ګوري، چي سيتا نشته، غم او پرېشاني ورپېښه شوه او په ځنګله کي ئې د سيتا لټون پيل کړ. په دې وخت کي يوه ټپوس چي (جتايي) نومېده دوی ته خبر ورکړ، چي راون سيتا له ځان سره لانکا ټاپو ته تښتولې ده، نو رام په ټوله کيسه پوه شو، ولاړ او د بېزوګانو له مشرانو (هنومن) او (سګريو) سره ئې پيمان وتاړه، چي په ګډه به د دېوانو له لښکر سره جګړه کوي او سيتا به ژغوري.

ها خوا راون له سيتا سره د واده غوښتنه کوي، خو وفاداره او پاکه سيتا، چي د خپل محبوب خاوند رام په بېلتانه کي کړېږي، ورته وايي چې ستا ټوله پاچاهي به د رام له يوه ويښته سره برابره نه کړم (رام ځلانده لمره دئ او ته تش يو اوراورکی چينجی يې!) راون په غوسه کېږي او غواړي، سيتا ووژني، خو په دې وخت کي د هغه بله مېرمن (مدودري) د هغه مخه نيسي، راون دوې مياشتې سيتا ته وخت ورکوي او ورته وايي، چي تر هغه وروسته به يا له ده سره واده کوي او يا به ئې ښځينه دېوانو ته اچوي چي هغوی ئې وخوري.

رام د بیزوګانو په مرسته یو اوږد پول جوړ کړ او ځان ئې د لانکا ټاپو ته ورساوه، جګړه پیل شوه، رام ګڼې او سختې جګړې وکړې او بالاخره ئې د دېوانو مشر راون وواژه او ښکلې سیتا ئې وژغورله.

تراژیدي دلته پای ته و نه رسېدله، خکه د تور او تومت دروازې لا پرانیستې وې، رام او سیتا و نه شو کړای ژر یو بل ته ورسېږي، بدګومانه خپلو او پردیو په سیتا تور پوري کړ، چې ډېره موده ئې د دوښمن په اسارت کې تېره کړې ده او خدایزده که پاکه پاته وي، نو د رام لایقه نه ده. سیتا پر خپلې پاکۍ ټینګار کاوه او د دې له پاره چې خپله پاکي ثابته کړي، غوښتنه ئې وکړه، چې د ټولو په شتون کې دې یو لوی اور بل کړي او دا به د اور په لمبو کې خپله پاکي زبات کړي. همداسې وشول، یو لوی اور بل شو او ښکلې سیتا ورغله، هغې د اور لمبو ته وویل: زما زړه یوه شېبه د رام له یاده تش نه وو، ته اې اګني (د اور لمبې) ! شاهد اوسه، چې ما رام نه وو هېر کړی نو ته له ما څخه مخ مه اړوه، که مې ګناه کړې وه، ما په غېږ کې ونیسه او ومې سوزوه، خو که پاکه یم او بل څوک مې ان لا په خوب کې هم نه وي لیدلی، بیا مې نو پاکي خلکو ته وروښیه! دا ئې وویل او ځان ئې د اور لمبو ته وسپاره، پاکه سیتا د اور په لمبو کې و نه سوزیده، د اور سترو لمبو ښځا پیل کړه، اور غلبلې وکړې او ښکلې سیتا ئې د رام لمني ته ورګوزار کړه، رام او سیتا یو بل ته ورسېدل، غاړه غړۍ شول او رام خپلې سیتا ته وویل: ستا پر پاکۍ مې باور درلوده، خو د خلکو له خولو او بدګومانیو څخه ستا د ژغورلو له پاره مې دې ازمون ته زړه ښه کړ.

رام، سیتا او نور خپل خپلوان او ملګري تر څوارلسو کلونو وروسته په خوشالۍ سره خپل ښار ته راستانه شول او د خپل پلار تاج او تخت ئې تر لاسه کړل.

راځئ د دغې سترې حماسي اسطورې د متن یوه برخه په ازاده پښتو ژباړه کې ولولو، په دې برخه کې د دېوانو د پاچا راون او سیتا تر منځ بحث ته پام وکړئ:

"نیمه شپه وه، چې راون خپلې تر ټولو ښکلې جامې واغوستلې، ځان ئې په ګرانبیه ګاڼو سینګار کړ او له پینځه سوه ښکلیو ښځو سره چې ټولې ښایسته او نازولې وې، د سیتا ځای ته راغی، غمجنه سیتا سر پر زنګانه ناسته وه، راون وویل: اې سیتا! له زړه څخه دې د رام مینه وباسه! که هغه ښه وای نو د خپل پلار له سلطنت څخه به نه شړل کېده. زما وګړي هره ورځ د هغه په شان زرګونه خلک خوري، هغه کله چې له تا سره وو، نو مینه ئې درسره درلودله، خو اوس چې له تا څخه لیري دئ، ستا په اړه فکر نه کوي. دلته د راتللو زړه او ځواک هم نه لري، نو ته

دي هم زړه ورڅخه صبر کړه! راځه له ما سره جوړه شه! او زما له غېږي او ميني څخه د ځوانۍ خوند واخله! راځه چي يو ځل بيا دي ځوانه کړم، که دي يو ځل د خپلو ښکلو سترګو په غمزه په مينه راوکتل نو خپلي ټولي ښځي به ستا مينځي کړم او د لانکا ټول سلطنت او دولت به ستا پښو ته وغورځوم.

سيتا غوسه شوه، يو خس ئې راپورته کړ او د خپلو سترګو تر مخ ئې ونيوه او ورته ئې وويل: اې راونه! مګر تا زما رام او لکشمن نه دي ليدلي، چي داسي بې پروا خبري دي له خولې څخه راوځي؟ هغه وخت چي زما مېړه او لېور په ښکار پسي ولاړل، نو ته د يوه عابد په جامه کي راغلې او زه دي راوتښتولم، که هغوی هلته واى نو تا به ئې له غشيو او تورو څخه ځان نه وو خلاص کړاى، هغوی به ستا بدن ټوټې ټوټې غورځولی وای. هر څوک چي د داسي زمريو ناموس ته په بده وګوري، نو له ژونده به ستړى وي او په لوى لاس به ځان د مرګ کومي ته سپاري. رام يو ځلانده لمر دئ او ته يو اوراورکی چينجی يې! ژر به پر سيند پول وتړي او يا به ټول سيند د خپلو غشيو په لمبو کي وسيزي، خو ځانونه به دلته راورسوي. ژر ده چي زما رام به تا له خپل لښکر سره يو ځاى ووژني او ما به بيرته له ځانه سره بوځي.

راون ورته وويل: ستا دا ترخې او ستوغي خبري ځکه اورم او څه نه درته وايم، چي پر تا مي زړه بايللی او درباندي مين يم او که نه رام څوک دئ چي لانکا ته راشي او له ما سره دي جګړه وکړي؟ زه خپل سر ستا پښو ته ټيټوم، هغه سر چي د دنيا ټول ديوان، اهريمنان، ماران، ژوي او بلاوي ټول ئې لمانځنه کوي، هغه سر چي د ځمکي ټول واکمن او د اسمان اوسېدونکي ورته پر ملا ټيټيږي، هو زه خپل سر تا ته کوزوم، يوازي يو ځل راته وګوره!

سيتا ورته وويل: هو رښتيا هم ستا او د رام تر منځ جګړه سمه نه ده ځکه هغه د يوه زورور هاتي په څېر دئ او ته تښتېدونکی ګيدړ يې. هغه د هسک ګوربت دئ او ته يوه چوغکه يې هغه سيمرغ دئ او ته د مار بچی يې. که دومره نارينه او زړه ور وې، نو ولي دي د هغوی په شتون کي زما د راتښتولو زړه و نه کړ؟ او د غله په څېر دي له چل او دوکې څخه کار واخيسته؟

راون له دې خبرو څخه سخت په غوسه شو، توره ئې راوويسته، چي سيتا ووژني، خو د راون مېرمني (مندودري) د هغه لاس ونيوه او ورته ئې وويل: په هيڅ کتاب کي ئې د ښځو د وژلو اجازه نه ده ورکړې، ته يو ستر پاچا يې او دا کار له تا

سره نه ایسي . راون د ښځي په خبره قانع شواو په غوسه ئې سیتا ته وویل :

دوې میاشتي وخت درکوم، و به ګورم، چي څنګه ستا رام راځي او تا له ما څخه بیایي؟ که تر دوو میاشتو وروسته دي بیا هم زما غوښتنه و نه منله، نو تا به دېو مېرمنو ته وروسپارم چي ودي خوري. دا ئې وویل او مخ پر کور روان شو. دېومېرمني به راغلې او د سیتا د وېرولو له پاره به ئې ډول ډول نخرې کولې، هغوی به وېروونکې څېرې ورخپلي کړې او لکه لویي لویي شیشکي عجیب و غریب غږونه به ئې ایستل. بیا به ئې د راون د زور، زړورتیا او ځواک خبري ورته کولې. (ترچتا) چي د سیتا پیره دار وو دېومېرمنو ته وویل: د سیتا له ځورولو لاس واخلئ، هڅه وکړئ هغه خوشاله وساتئ! یوازي په خوشالۍ او سړیتوب د هغې زړه تر لاسه کولای شئ". (راماین: ۳۱۸ ، ۳۱۹ ، ۳۲۰).

راماین د میني، وفادارۍ، پاکۍ او زړه ورتیا حماسه ده. رام د خپلي میني او مېرمني د ژغورني له پاره ډېري سختي ګالي او مېرمن ئې د ده له پاره د خپلي سپیني لمني حریم ساتي او هیڅ داغ پرې نه پرېږدي.

په راماین کي د بېلابېلو ارباب الانواعو حضور وینو، په دې جدال کي هم اسماني ارباب الانواع په خپلو کي سره وېشل شوي دي. د شر ارباب له دېوانو او د رام له دوښمنانو سره ولاړ دي او د خیر ارباب له رام سره ملګري دي. راون انسان نه دئ، بلکي یو دېو دئ، چي ډېر سرونه او لاسونه لري، کله چي پر لاره ځي نو ځمکه ښوري او وژل ئې د هر چا کار نه دئ. د بیزوګانو لښکر له رام سره ملګرتیا کوي. ځیني مفسران فکر کوي، چي دا ټولي پېښي د رام او سیتا په روان کي پېښېږي، دوی د خپل نفس دېوان وژني او د دې له پاره چي تلپاته سپېڅلتیا ته ورسېږي نو له سختو حالاتو او ازموینو څخه په بریالیتوب ځان راباسي.

راماین د اخلاقو، دودونو، مذهبي ادابو او رسمونو یو بشپړ دایره المعارف دئ. راماین ځکه په مذهبي کتابونو کي شمارل کېږي، چي د ټولني حاکم اخلاق او عملي کړني پکښې دي، رام او ملګري ئې د دغو ښو اخلاقو د عملي کولو له پاره راپاڅېدلي دي. د دې اسطورې هر کرکټر د یوه اخلاقي یا ضد اخلاقي اصل سېمبول دئ. دا منظومه دنړۍ په کچ خپل ادبي او اسطوره یي ارزښت لري، چي د نړۍ ګڼو ژوندیو ژبو ته ژباړل شوې ده.

نور بیا ...

***

پاس پر کمر ولاړه ګله
نصیب د چا یې او به زه درخېژومه

پوهنوال رسول باوري/ کابل

# نړیوال کلتوري میراثونه

**دوهمه برخه**

## استریا (اطریش)

له اطریش هیواده تر اوسه ټول ټال نهه (۹) تاریخي سیمي او تفریحي ټاټوبي د نړیوال کلتوري میراث په لړۍ کي شامل سوي دي:

- Historic Centre of the City of Salzburg
- Palace and Gardens of Schönbrunn
- Hallstatt-Dachstein / Salzkammergut Cultural Landscape
- Semmering Railway
- City of Graz – Historic Centre and SchlossEggenberg
- Wachau Cultural Landscape
- Fertö / Neusiedlersee Cultural Landscape *
- Historic Centre of Vienna
- Prehistoric Pile dwellings around the Alps *

د اطریش له نهه تاریخي او تفریحي سیمو څخه یوه تفریحي سیمه د سیمیرینګ اور ګاډي لاري په زړه پوري جوړښت دئ. د اورګاډي دا لاره په خپل ډول کي د سیول انجنیرۍ تر ټولو د لوړ کیفیت او حیرانونکي ډیزاین دئ. د دې لاري د جوړېدلو چاري په ۱۸۴۸ میلادي پیل او په ۱۸۵۴ میلادي کال پای ته ورسیدې. د ډول ډول لوړو ژورو، تونلونو، د درو تر منځ پلونه او په لوړه ارتفاع کي د لاري جوړېدلو حیرانوونکی جوړښت لا تر اوسه په نړۍ کي سیال او رقیب نه لري. څوارلس تونلونه چي اوږدوالی ئې ۱۴۷۷ متره اوږده دئ او شپاړس نور تونلونه ئې په همدې اندازه اوږده جوړ سویدي، ۱۱۸ ډبرین بلونه او ۱۱ اوسپنیز بلونه په ځانګړي ډیزاین جوړ سویدي. د دې لاري په اوږدو کي مغازې، د توریستانو له پاره د اوسېدلو ټاټوبي او د سیمي د اوسیدونکو کورونه هم ودان سویدي. د اورګاډي دا لاره په ۲۰۰۸ میلادي کال د نړیوال کلتوري میراث په لړ کي وشمېرل سوه.







## اذربایجان

له اذربایجان هیواده تر اوسه دوه ټاټوبي په نړۍ‌وال کلتوري میراث کې منل سویدي.

- Walled City of Baku with the Shirvanshah's Palace and Maiden Tower
- Gobustan Rock Art Cultural Landscape

د باکو ښار حفاظتي زوړ دېوال شا او خوا ته د ډېرو لرغونو زمانو اثار او پاته شوني سته چي د بېلا بېلو کلتوري دورو نخښي ځرګندوي. د لرغوني ډېري دورې څخه بیا تر زردشتي، ساساني، عرب، عثماني او روسی کلتوري پړاوونو پوری نخښي سته چي د همدې نخښو او د پر له پسې کلتوري دورو شتون له امله ئې ارزښت زیات دئ. د دوولسمي میلادي پېړۍ هغه منار او میدان چي د باکو د ښار د پېژندلو ښېلګه شمېرل کېږی دا ارزښت لا زیات کړی دئ. دا لرغوني ټاټوبی په ۲۰۰۰ دوه زرم میلادي کال د نړۍ‌وال کلتوري میراث غړيتوب تر لاسه کړ.



## بحرين

د مرواریدو د لټون بحري غاړه

له بحرین هیواد څخه دوه نامتو ټاټوبي په نړۍ‌وال کلتوري میراث کي منل سویدي:

- Qal'at al-Bahrain – Ancient Harbour and Capital of Dilmun
- Pearling, Testimony of an Island Economy

د بحرین هیواد د دوو نامتو سیمو څخه یوه هم د د مرواریدو د لټون بحري غاړه ده چي د مرواریدو د لټون او تر لاسه کولو په تړاو ئې اقتصادي ارزښت تر څنګ توریستي ارزښت هم د پام وړ ګرځېدلی دئ. د مرواریدو د لټون او تر لاسه کولو له پاره د اولسو ودانیو جوړښت د مرواریدو د پیدا کولو چاري لا د پام وړ

ګرځولي دي. دا سیمه د مهراق ښار د دروازې څېرمه د Qal'at Bu Mahir د قل ات بو ماهیر په نوم نړۍ وال شهرت لري. دا سیمه په ۲۰۱۲ میلادي کال په نړۍ وال کلتوري میراث کې ومنل سوه.



## بنګله دېش

له بنګله دېش هیواد څخه درې نامتو سیمې او ابدات په نړۍ وال کلتوري میراث کې منل سویدي:

- Historic Mosque City of Bagerhat
- Ruins of the Buddhist Vihara at Paharpur
- The Sundarbans

د بنګله دېش هیواد له دریو نامتو سیمو څخه یو هم د بجرات د پخواني ښار کې د تاریخي جومات شتون دئ چې له تاریخي اړخه او هم د معمارۍ د جوړښت له مخې د ارزښت وړ ګڼل سوی دئ. دا جومات د ترکي

واکمن الجایتو جهان د واکمنۍ پر مهال چې د پنځلسمې میلادي پېړۍ سره سمون خوري د دوو سیندونو جینجس او برهما پوترا تر منځ ودان سوی دئ. په بنګله دېش هیواد کې دا لوی جومات تر ټولو نورو جوماتونو پخوانی منل سوی دئ. دا جومات په ۱۹۸۵ میلادي کال د نړۍ وال کلتوري میراث په لړ کې ومنل سو.





## بار بادوس

تاریخي پوځي باغ او د هغه قرارګاه

تاریخي پوځي باغ او د هغه قرارګاه په باربادوس هیواد کي د برتانوي واکمنۍ یوه ځرګنده بېلګه ده. د استعمار د مهال دا باغ او د هغه دېوالونه د اووه لسمي، اتلسمي او نونسمي میلادي پېړیو ودانیز لید لوری برملا کوي. د دې تاریخي پوځي باغ او د هغه قرارګاه کي زیات شمېر تاریخي ودانۍ لا تر اوسه پر خای پاته دي چي د برتانوي استعمار یاد ګېل کېږي. دا تاریخي پوځي باغ او د هغه قرارګاه په ۲۰۱۱ میلادي کال په نړۍ وال کلتوري میراث کي ومنل سوه.









## بیلاروس

د بیاتویزا ځنګل

له بیلاروس هیواده درې تاریخي سیمي او ټاټوبي د نړۍ وال کلتوري میراث په لړ کي منل سویدي.

- Białowieża Forest *
- Mir Castle Complex
- Architectural, Residential and Cultural Complex of the Radziwill Family at Nesvizh
- Struve Geodetic Arc*

د بیاتویزا ځنګل د بیلاروس او پولینډ سرحدي کربښي ته نژدې واقع دئ. دې ځنګل د اروپا تر ټولو ځنګلونو زیاته ځمکه په خپلو حدودو کي را نغښتېده، چي ټول ټال ئې تر ۱۴۱ هکتاره زیاته ځمکه نیولې ده. دا ځنګل چي د توري بحیرې او بالتیک بحیرې تر منځ ستر ځنګل بلل سوی دئ او د هغوی د اوبیزو زېرمو ځخه خړوبېږي، د ونو او نباتاتو بېلا بېل

ډولونه سته او د ژوبو بېلابېل نسلونه ژوند پکښې کوي. دا ځنګل په ۱۹۷۹ میلادي کال د نړۍ وال کلتوري میراث په لړ کې ومنل سو.







## بلجیم

د ستوکولیت کور (Stoclet huis)

د بلجیم هیواد یوولس تاتوبي او تاریخي ابدات په نړۍ والو کلتوري میراثونو کې منل سویدی:

- Flemish Béguinages
- La Grand-Place, Brussels
- The Four Lifts on the Canal du Centre and their Environs, La Louvière and Le Roeulx (Hainaut)
- Belfries of Belgium and France * ۳
- Historic Centre of Brugge
- Major Town Houses of the Architect Victor Horta (Brussels)
- Neolithic Flint Mines at Spiennes (Mons)
- Notre-Dame Cathedral in Tournai
- Plantin-Moretus House-Workshops-Museum Complex
- Stoclet House
- Major Mining Sites of Wallonia

د یوه بانک خاوند او د هنري اثارو راټولوونکی ادولف ستوکولیت په ۱۹۰۵ میلادي کال د یوې نامتو ودانۍ د بیا رغاونې چارې پیل او په ۱۹۱۱ میلادي کال بشپړې کړې. دا وداني د وین ودانیزو چارو بهیر یوه بېلګه ده چې په جوزیف هوفمان پورې ئې اړه درلوده. په وداني کې یو لوی کور او د هغه اړوند باغ سته چې له هنري اړخه ئې د وین د بهیر او په هغو پورې تړلي هنري بېلګو تر څنګ په اروپا کې د دوو نامتو معمارانو لکه

کومان موسیر او ګوستف کلیمیت د کار او زیار نښې هم لیدل کېږي. دا ماڼۍ په اروپايي هېوادونو کې د ودانیزو چارو یوه خورا ارزښتمنه بېلګه ګڼل سوېده. د ستوکولیت کور په ۲۰۰۹ میلادي کال د نړۍ وال کلتوري میراث په لړ کې ومنل سوه.







لیکوال: م. نسیم نوري:

### څو د کوښښ ملا و نه تړې
### له طمع نه خلاصېږې

وايي چي: يوه مېږي د جد و جهد ملا تړلې وه او د خاورو ذرې ئې چلولې. يو مرغه راغی له مېږي څخه ئې پوښتنه وکړه چي دا څه خواري کاږې؟ ده ورته وويل چي: په مېږيانو کي زما له يو چا سره آشنايي سته. هغه راته وويل چي که رشتيا زما دوست يې دغه خاوره وچلوه، نو زه هم دغه يم بوخت يم. مرغه ورته وويل چي: دا خو ستا له طاقته نه ده پوره نه ئې سي رسولای. مېږي ورته وويل چي ما خو ملا تړلې ده، کوښښ کوم که مي تر سره کړه خو ښه تر ښه که نه وي معذور به مي وبولي.

فرد

زه به څم پر لار د سعي څو مي وس وي
و هر چا ته به کوښښ د سعي بس وي

نظم

نه رسېږي بې له سعي څوک بالا
ليس للانسان الا ما سعٰی
ته کوښښ کړه خان کړه خلاص له بد ويلو
که و نه سو، خود معذور يې د هر چا
تر مېږي نو بل نحيف وضعيف څوک دئ
په کوښښ کي ئې تړلې خپله ملا
نه د چا پر پس مانده باندي سولېږي
نه آزار رسوي چا ته برملا
تر مېږي چي هم يو څوک سي بې همته
وي په طمعه لکه سپی پر هر درګا
که به نه وايم سپيني دي رب پرې که
د طماع خوله وي وازه برملا
جد و جهد باندي سړی له هر څه ګرزي
نې په بده يادوي څوک پسه شا
خدايه راکړې ما "نسيم" لره توفيق ته
په همت کي تر مېږي لا نه سم تا



ليکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# حسن بصري او افغانستان



بسم الله الرحمن الرحيم. حسن بصري (رحمه الله) لومړنی اسلامي عالم دئ چي افغانستان ته راغلی دئ. دا هغه وخت وو چي په سر تر پايه ټول افغانستان کي حتی يو مسلمان هم نه وو بلکي افغانان ګرده کافران او بت پرستان ول. حسن بصري (رح) د نن څخه ۱۴۰۰ کاله مخکي زموږ نيکه ګانو ته اسلام ورښووی. هغه دلته لومړنی بلندوی، لومړنی مدرس او لومړنی محدث دئ چي تشريف ئې راوړی دئ. هغه په افغانستان کي دري کاله تېر کړي دي او په دې موده کي ئې د اسلام د تبليغ له پاره نه ستړي کېدونکي خدمتونه کړي دي. حسن بصري (رح) په زرنج، بُست، کندهار، زابل، غزني، کابل او نورو ښارونو کي د خورا زياتو افغانانو زړونه د اسلام د سپېڅلي دين په نور منور کړي دي.

حسن بصري (رح) يو مشهور او مدبر تابعي وو (يعني د رسول الله صلی الله عليه وسلم اصحاب ئې مستقيماً ليدلي او حديثونه ئې خني اورېدلي يا روايت کړي دي).

داسي ادعا هم کېږي چي حسن بصري (رح) د تصوف او طريقت مؤسس دئ. سيرالاوليا، سيرالاقطاب او نور آثار وايي چي حسن بصري د حضرت علي رضي الله عنه په اجازه د طريقت او تصوف د ټولو هغو سلسلو نظام قايم کړ چي نن رايج دي. که هغه قادريه

ده یا سهروردیه، که چشتیه ده یا نظامیه، که رفاعیه ده یا شازلیه، که المغربیه ده یا علابیه. صرف نقشبندیه پکښې شامله نه ده چې وایي هغه د سلمان فارسي (رض) په واسطه د حضرت ابوبکر صدیق (رض) سره تړل کېږي. خو د دې ادعاوو په اړه علمي، کره، مقنع او پاخه شواهد نسته. په «اللمع و قوت القلوب» کې راغلي چې د صوفي کلمه اول ځل حسن بصري استعمال کړې ده (افغانستان بعد از اسلام : ۹۰۶ مخ). عارفانو حسن بصري د تصوف له مؤسسینو څخه بللی دئ (تاریخ سیستان: ۸۸مخ).

په هر صورت، حضرت بصري (رح) جامع العلوم وو. په علماوو کې ئې لوړ او عالي مقام درلود. فقیه او ثقه وو، معتمد علیه او مستند وو، عابد او متقي وو، یو ممتاز، بې مثاله او جید عالم وو. هغه دومره فصاحت او بلاغت درلود چې هیڅوک ئې له تأثیره بې تأثیره کېدای نه سو. همدا علت دئ چې په زرونو افغانان ئې په اسلام مشرف کړي دي (افغانستان در مسیر تاریخ: ۶۹ مخ). روایت دئ چې دی اویا کاله همیشه په اوداسه گرزېدی. وایي چې د ده په نصیحت کې دومره تأثیر وو چې اورېدونکي به له ډېري ژړا څخه بې هوښه سول (تذکرة الاولیا: ۱۵ او ۱۸ مخونه).

حسن بصري (رح) څوک دئ؟ د ده مور د رسول الله (ص) د سپېڅلي میرمني (ام سلمه رضی الله عنها) آزاده کړې مینځه وه چې خیره نومېده. پلار ئې فیروز نومېدی چې یو ایراني زردشت (اور لمانځونکی) وو. هغه د یزید بن ثابت (رض) مریی وو چې تر مسلمانېدو وروسته ئې آزاد کړ. هغوی د میسان (میشان) اوسېدونکي ول چې بیا اسیر ونیول سول. کله چې هغوی وروسته مسلمانان سول، نو د فیروز نوم په «یسار» سره واوښتی. یسار د حضرت عمر (رض) د امارت پر مهال د خیره سره واده وکړ. حسن بصري (رح) په ۲۱ هجري کې د حضرت عمر (رض) تر شهید کېدلو دوه کاله مخکې په مدینه کې زوکېدلی دئ او په ۱۱۰ هجري کې وفات سوی دئ (یعنی ۶۴۲-۷۲۸ میلادي).

ویل کېږي چې د ده مور به دی اکثراً د ام سلمه (رض) په کور کې پرې ایښي وو او پخپله به په کارونو لگیا وه. کله چې به دغه ماشوم ژړل نو ام المؤمنین ام سلمه (رض) به د ده د مور تر راتگ پورې د ده د آرامولو په خاطر خپل تی ورکاوه او د دې شیدې به ئې رودلې چې خورا لږ وې. د خلکو دا خیال دئ چې د حسن بصري حکمت او فصاحت د همدې شیدو برکت دئ (طبقات ابن سعد: ۱۲۵ مخ).

د یو روایت له مخې حسن بصري (رح) آن تر اصحابو هم بختور او لوړ دئ، ځکه چې د رسول الله (ص) د سپېڅلي مېرمنی شیدې ئې رودلې دي چې دغسی سعادت د هیڅ صحابي په نصیب سوی نه دئ.

تر زوکېدو وروسته چې کله خیره خپل زوی د حضرت عمر (رض) خدمت ته وړاندې کړ، نو حضرت عمر (رض) وفرمایل چې پر ده باندې د حسن نوم کښېږدئ دا ځکه چې ډېر ښایسته دئ (تذکرة الاولیاً: ۱۴ مخ).

پر خیره باندي خپل ماشوم (حسن) ډېر ګران وو او د هغه راتلونکي ته ډېره هیله منه وه. کله چي به له کارونو خلاصه سوه، نو دی به ئې په غېږ کي واخیست او د رسول الله (ص) ګرانو اصحابو ته به ئې وروستی چي هغوی د خیر دعا ورته وکړي. حضرت عمر (رض) یو له دغو مهمو او مدبرو اصحابو څخه وو، ده یوه ورځ چي حسن د خپلي مور په غېږ کي وو، له ډېر محبت څخه داسي دعا ورته وکړه: اللهُمَفقیهُ فِی الدِین و حَبَبهُ اِلی الناس. یعني: یا الله ! دی د دین فقیه او د خلکو محبوب وګرځوه. همداسي هم وسوه او هغه د ژوند تر پایه ستر علمي مقام او د هر چا په زړه کي ځای وموند.

حسن بصري (رح) په کوچنیوالي کي د صحابه وو څخه علم زده کړ او د خپل ذهانت او ذکاوت له امله پر ټولو ډېر ګران وو او د هغوی څخه ئې مستقیم حدیثونه اورېدلي او روایت کړي دي، لکه: ابو هریرة (رض)، عبدالرحمن بن سمُره (رض)، عمران بن حصین (رض)، مغیره بن شعبه (رض)، عبدالله بن عباس (رض)، انس بن مالک (رض)، عبدالله بن عمر (رض) او ګڼ شمیر نور (طبقات ابن سعد: ۱۲۶ مخ). روایت دئ چي دی د نړۍ یوازینی تابعي او بزرګ دئ چي د ۱۲۰ صحابه وو سره ئې لیده کاته کړي او د هغوی له فیوضاتو ګټمن سوی دئ (تذکرة الاولیاً: ۱۵ مخ).

حسن بصري (رح) د مدینې په وادي قرا کي اوسېدلی او غټ سوی دئ. ده پخپله ویلي دي چي ما حضرت عثمان (رض) د ولاړي او ناستي په حال کي لیدلی دئ چي خطبه به ئې وركوله او هغه مهال زه پنځلس کلن وم (طبقات ابن سعد: ۱۲۵ مخ). روایت دئ چي یوه ورځ حجاج بن یوسف ورځخه وپوښتل: حسنه ! د څونه عمر یې؟ ده ورته وویل چي زه د حضرت عمر (رض) د شهادت پر مهال د دوو کالو وم. حجاج ورته وویل: په الله قسم چي ستا لید (نګاه) ستا تر عمر ډېر دئ (هماغه).

په هر صورت، د لومړۍ هجري پېړۍ تر وروستۍ لسیزي پوري تقریباً ټولو اصحابو کرامو (رض) د نړۍ څخه سترګی پټي کړي وې (یعني د ۷۳۰ میلادي حدود). یوازي انس بن مالک (رض)، سعد بن الساعدي (رض) او عامر بن واثله (رض) وروستني وفات سوي اصحاب دي. نور نو د تابعینو دوره وه. په دې دوره کي د اصحابو کرامو ګڼ شمېر روزلي اشخاص موجود ول چي مهم ئې دا دي: نافع (رح)، عکرمه (رح)، د مکې عطا بن رباح (رح)، د یمن طاؤس بن کیسان (رح)، د یمامه یحیی بن کثیر (رح)، د کوفې ابراهیم النخعي (رح)، د بصرې حسن بصري (رح) او ابن سیرین (رح)، د خراسان عطأ الخراساني (رح) او د مدینې سعید بن مسیب (رح) او عمر بن عبدالعزیز (رح). د تابعینو دوره د ۹۰ هجري څخه تر ۱۵۰ هجري پوری ده. حسن بصري (رح) د دې دورې سرتاج دئ.

د قرآن مشهور مفسرین (مثلاً ابن کثیر، الذهبي، السیوطي او نور) حسن بصري جامع الکمالات او د ټولو علومو متخصص آن د دین امام (امام الدین) او د ټولو تابعینو سردار (رئیس التابعین) بولي. دی د علم او عمل له مخي د خپلی زمانې یعني د تابعینو سروال وو،

ابو برده وايي: ما د رسول الله (ص) اصحابو ته د حسن بصري څخه پرته بل څوک دومره مشابه نه دئ ليدلی. يعقوب فسوي وايي چې ما د حسن بصري څخه اته زره مسايل حفظ کړي دي (سير اعلام النبلاء، څلورم جلد).

ځيني معتبر آثار ليکي چې حتی اصحابو هم حسن بصری ته د هغه د علميت، فصاحت او ذهنيت له امله خاص احترام درلود. د مشهور صحابي حضرت انس بن مالک (رض) څخه يوه مسأله وپوښتل سوه. هغه وفرمايل: مولانا حسن ومومئ او ترې وئې پوښتئ. خلکو ورته وويل چې موږ ئې ستاسي څخه پوښتو او تاسي موږ ته پرحسن حواله راکوئ. ويې فرمايل: ما هم حديثونه اورېدلی دي او حسن هم. خو زما هېر سوي دي او د هغه په ياد دي (طبقات ابن سعد: ۱۳۸ مخ). د حسن بصري (رح) مشهور شاګردان ايوب سختياني، حماد بن مسلمه، حميد بن ابي الطويل، مالک بن دينار او نور دي.

حسن بصري (رح) بېلابېل نظامونه او واکمنان ليدلي دي لکه د حضرت عثمان او حضرت علي (رض) خلافتونه او د امويانو لس پاچهان، په تېره بيا د حجاج بن يوسف له ظلمه ډک ولايت. نو ځکه هغه په هيڅ فتنه او شخړه کي د کوم طرف پلوي توب او د بل دښمني نه ده کړې (که هغه په ابتدا کي د حضرت علی رضي الله عنه او معاويه تر منځ وو، يا په انتها کي د عبدالرحمن بن اشعث او حجاج بن يوسف تر منځ وو) بلکي حتی الوسع ئې د داسي فتنو د لرېښت او ختمولو کوښښ کړی دئ. همدا علت دئ چې شيعه ګان (خصوصاً ايراني شيعه ګان) د حسن بصري سره حساسيت او ضديت لري او ادعا کوي چې حسن بصري د معاويه او يزيد پر ضد پاڅون نه دئ کړی بلکي هغوی ته ئې بيعت کړی وو. خو حقيقت دا دئ چې حسن بصري په دې هکله پاخه دلايل وړاندی کړي دي چې موضوع ئې د دې ليکني برخه نه ده.

په هر حال، په ۷۲۱ ميلادي کي ابو عبيره د عراق والی سو. هغه چې راغی نو درې مشهور علماء ئې راوغوښتل چې هغوی محمد ابن سيرين، الشعبي او حسن بصري ول. ابو عبيره چي توند خويه او جابر انسان وو، دوی ته وويل چې څه مشوره راکوئ؟ ابن سيرين او شعبي معمولي خبري ورته وکړې. بيا ئې پر حسن بصري ږغ وکړ چي ته څه وايې؟ حسن بصري په ډېر جرأت ورته وويل چي اې د عبيره زويه! د الله څخه تر يزيد ډېر وبېرېږه او د يزيد څخه تر الله ډېر مه بېرېږه. الله تا له يزيد څخه ساتلای سي، خو يزيد دي له الله څخه نه سي ساتلای. الله به ډېر ژر يوه ملايکه درته راولېږي تر څو تا د دې شانداره مانۍ د دې عالي مسند څخه لاندي يو داسي تنګ او تياره خای ته راوغورځوي چي قبر نومېږي. هيڅ شی به دي دا وخت، بې له نېک عمل څخه و نه ژغورلای سي. والي هم ډېر متأثر سو او دی ئې تر هغو نورو دوو په ډېره غټه تحفه سره ونازوی.

روايت دئ چې حسن بصري ډېر غښتلی، جګ، چاغ او چارشانه وو. خورا ښايسته او سپين مخی وو. يوه ورځ حجاج بن يوسف ورڅخه وپوښتل چي اې حسنه! تا

خپل دغه زور او انرژي له کومه کړې ده؟ ده ورته وویل چې د حضرت عمر (رض) د خلافت د وروستیو دوو کالو څخه مې اخیستې ده (چې زما د ژوند لومړني دوه کاله ول).

حسن بصري (رح) دومره متواضع او منکسر وو چې هر څوک ئې تر ځان بهتر باله. یوه ورځ ئې د دجله د سیند پر غاړه یو حبشي د یو بوتل شرابو سره ولیدی چې د یوې ښځې سره ئې هغه څښل. دا مهال ئې تصور وکړ چې آیا دا هم تر ما بهتر کېدای سي؟ ځکه چې دی خو شرابي دئ. پر همدې مهال یوه کښتۍ ولیدل سوه چې اووه کسان پکښې سپاره ول او هغه ډوبه سوه. حبشي چې دا صحنه ولیده نو اوبو ته ور وغورځېدی او شپږ کسان ئې جدا جدا راوکښل. بیا ئې حسن بصري ته عرض وکړ چې اوس نو ته صرف د هغه یوه ژوند وژغوره! ما خو ته امتحانولې چې ستا باطني سترګې خلاصې دي که یا. دغه ښځه چې زما سره ناسته ده، زما مور ده او په دغه بوتل کې هم ساده اوبه دي.

حسن بصري چې دا هر څه ولیدل او وایې وارېدل نو فکر ئې وکړ چې دا سړی یو غیبي انسان دئ، نو ژر د هغه په پښو کې ولوېدی او ورته وې‌ویل: لکه څنګه چې تا د دغو شپږو کسانو ژوند وژغوری، همداسي زما ژوند هم له تکبر څخه وژغوره . هغه دعا ورته وکړه چې الله تعالی دې تا ته د بصیرت نور عطا کړي، یعني تکبر دې درڅخه واخلي. همداسي هم وسوه او تر دې وروسته ئې بیا ځان تر هیچا هم بهتر نه ګاڼه (تذکرة الاولیا: ۲۱او ۲۲ مخونه).

حسن بصري او جهاد:

د حسن بصري (رح) ټولو سوانح لیکونکو (مثلاً علامه ذهبي، حافظ سیوطي، حافظ ابن کثیر، محمد بن سعد، خیرالدین زرکلي او نورو) د ده جهاد او زړه ورتوب یاد کړی دئ. خو زموږ په منځ کي د ده د ژوندانه دغه اړخ ناویلی پاته دئ.

د حسن بصري (رح) ژوند، فعالیت او مبارزه پر درو عمده برخو وېشلای سو چې هغه علمي ډګر، د تصوف او طریقت بنسټ او بالاخره جهاد دئ. د علم او تصوف اړخونه ئې معلوم دي او ډېر ذکر کېږي. خو د جهاد برخه او فعالیت ئې لږ توضیح سوی دئ حال دا چې جهاد د هغه د میني مشغله وه او په دې برخه کي ئې کمال کړی دئ.

حافظ ذهبي په «تذکرة الحفاظ» کي د حسن بصري (رح) په هکله داسي لیکلي دي: «بیا کله چې غټ سو نو جهاد ئې پر ځان لازم وباله او علم او عمل ئې لازمي وبلل او دی یو له هغو زړه ورو څخه دئ چې ډېره ستاینه ئې کېږي. دی د قطري بن فجایت سره (چې هغه د زړه ورتوب او شهامت له امله آسماني بر ښښنا بلل کېدی) برابر وو».

که موږ د علامه ذهبي (رح) دغه عبارت ته ښه ځیر سو، نو دوه ټکي ئې ځانګړتیا او باریکي لري: لومړی دا چې د حسن بصري (رح) د جهاد ذکر ئې تر علم دمخه کړی دئ؛ او دوهم دا چې د ده له پاره ئې د مجاهد کلمه نه بلکي «لازم الجهاد» لفظ کارولی دئ. نو له

دې څخه معلومېږي چې هغه جهاد ته ډېر اهمیت ورکاوه.

خو دا ټکی باید مدنظر ولرو چې په کومه زمانه کې چې حسن بصري (رح) جهاد ته راغلی وو، هغه وخت د مسلمانانو هیڅ کومه سیمه د کفارو په قبضه کې نه وه. دا لا څه، مشرکانو او کافرانو خو د مسلمانانو پر هیڅ منطقه د حملې جرأت نه درلود، بلکې د خپلو سیمو د ساتلو له پاره ئې لاس او پښنه وهل یعني صرف دفاع ئې کول.

په هر صورت، لکه چې مخکې وویل سوه، حسن بصري (رح) د خپل جهاد په لړ کې افغانستان ته هم راغلی وو او دلته ئې درې کاله تېر کړي دي. خلیفه حضرت عثمان (رض) د رسول الله (ص) یو ډېر تکړه ملګری عبدالرحمن بن سمُره (رض) د اته زره کسیز پوځ سره دلته راولېږی. هغه سیستان، بُست او رخد (کندهار) تر زابل پوري ونیول او بغاوت ئې ارام کړ. وروسته معاویه په ۴۳ هجري (یا ۶۶۳ میلادي) کې عبدالرحمن بن سمُره د یو پیاوړي پوځ سره یو ځل بیا افغانستان ته راولېږی. ابن سمُره په یو کال کې د دې ټولې سیمې ناآرامی آرامې کړې. بیا ئې بُست، کش (کشکي نخود)، داور (زمین داور)، رخج (اراخوزیا، د ارغنداو ناوه یا کندهار) ونیول. وروسته زابلستان او کابلستان ته پسې ورغی او په ۴۴ هجري کې ئې دا وطنونه هم ټوله ونیول (د افغانستان لنډ تاریخ ـ ۲۰۸ مخ). هغه درې کاله همدلته پاته سو. ده له ځان سره یوه ډله اسلامي علماء هم راوستل چې مشهور ئې حسن بصري وو. ده د تبلیغ له لارې اسلامي احکام په خلکو کې ټینګ کړل (افغانستان بعد از اسلام: ۱۵۷، ۱۵۸ او ۱۶۳ مخونه).

اسلامي فقهاوو په خراسان او سیستان کې پر ټولو دیني چارو، تعلیم، اسلامي اوامرو او د مسجدونو پر جوړولو کنټرول درلود او قضا هم دوی ته سپارل سوې وه. مثلاً کله چې عبدالرحمن بن سمُره (رض) او حسن بصري (رح) په ۴۶ هجري کې دلته راغلل نو د سیستان «آدینه مسجد» هغوی دواړو په ګډه جوړ کړ، داسې چې مسجد عبدالرحمن او محراب ئې حسن بصری جوړ کړ. دا په افغانستان کې لومړنی مسجد دئ چې زموږ نیکه ګانو عبادت پکښې پیل کړ. هغوی دواړو د دې مسجد تر څنګ یوه لویه دیني مدرسه هم جوړه کړه چې نوو مسلمان سوو افغانانو خپل اولادونه پکښې شامل کړل. حسن بصري (رح) څه باندې درې کاله د سیستان په آدینه مسجد کې کښېناست او د سیستان خلکو پر هغه باندې علم وایه (تاریخ سیستان: ۸۹ مخ؛ افغانستان بعد از اسلام: ۵۳۸ مخ).

تر آدینه مسجد لړ وروسته دوهم مسجد د بلخ «نه ګنبد مسجد» دئ چې په ۵۱ هجري کې د قیس بن السلمي له خوا د بودایانو د «نوبهار» معبد تر ورانولو وروسته د هغه پر ځای ودان سو.

عبدالرحمن بن سمره (رض) به د حسن بصري (رح) او نورو عالمانو په مرسته اسلام خپراوه او فتح سوي وطنونه به ئې سمدلاسه تر نظم لاندې راوستل. ده غوښته چې اسلامیت په تر لاسه سوو سیمو کې په متوازي

ډول پر مخ یوسي (د افغانستان تاریخ: ۶۱ مخ).

حسن بصري (رح) په افغانستان کې د خپل جهاد په هکله پخپله داسي ویلي دي: «ما د خراسان په عملیاتو کي برخه اخیستي ده. په هغو عملیاتو کي زما سره درې سوه صحابهٔ کرام ول. د هغوی څخه چي به هر یوه لمونځ راکاوه نو د یوه سورت آیتونه به ئې ویل او بیا به رکوع ته تلی (موسوعه فقه امام بصري: ۱۶ مخ).

ابو عبیده عبدالمومن وایي چي ما ولیدل چي یو شخص ترې وپوښتل: ابو سعیده! آیا تا کله هم په جهاد کي برخه اخیستي ده؟ ویې فرمایل: هو، ما د کابل په غزا کي د عبدالرحمن بن سمُره سره برخه اخیستي ده (طبقات ابن سعد: ۱۳۷ مخ).

دا لا څه، عبدالله بن سمُره (رض) هم په دې عملیاتو کي د یو عیني شاهد په توګه وایي چي زه د حسن بصري سره ملګری وم او په کابل، اندقان، اندغان او زابلستان کي مو درې کاله جهاد وکړ (هماغه: ۱۲۶ مخ).

باید وویل سي چي د صحابه وو، تابعینو او تبع تابعینو په زمانه کي د حج کولو سره خاص محبت او ذوق موجود وو. د پرله پسې حجونو کول یو عمومیت ګرځېدلی وو. هر چا به ډېر حجونه کول، خو حسن بصري (رح) په ټول ژوند کی صرف دوه واره حج کړی دئ یو ځل په زلمیتوب کي او بیا په بوډاتوب کي (هماغه: ۱۳۷ مخ). د دې کار علت څه وو؟ ابوعبیده آجری (رح) د ابو داؤد څخه روایت کوي چي حسن بصري دوه واره حج کړی دئ (ډېر ئې ځکه نه دې کړي چي) هغه په خراسان کي (په جهاد بوخت) وو (سیر اعلام النبلاء).

حج لا څه، حسن بصري (رح) د جهاد په خاطر خپله قضا او خپلي فتواوي هم پرېښوولې. سلیمان تیمي لیکي: حسن بصري په جهاد کي مصروف وو او جابر بن زید (د حسن بصري په غیاب کي) د بصرې مفتي وو. بیا چي کله حسن بصري بیرته تشریف راوور، نو د فتواوو صادرول ئې له سره پیل کړل (هماغه).

مؤرخینو دا هم لیکلي دي چي حسن بصري (رح) یو تکړه اداره چي او مالي منتظم هم وو. مثلاً علامه حبیبي (د فتوح البلدان، الطبري او الکامل په حواله) لیکي چي معاویه په ۴۶ هجري کی ربیع بن زیاد حارثي و سیستان ته راولېږی. هغه پر خلکو فشار راوړ چي علم، قرآن او تفسیر زده کړي. عدالت ئې مستقر کړ او ګڼ شمېر کافران مسلمانان سول. مالیې او جزیې تحویلېدلې. د حساب او محاسبې له پاره ئې مستوفیان او معتمدان وټاکل او په دې ټولو چارو کي ئې لارښوونکی حسن بصري وو چي د هغه له تدبیر څخه پرته ئې هیڅ هم نه کول. ربیع دلته دوه کاله او دوې میاشتي حکومت وکړ (افغانستان بعد از اسلام: ۱۹۶ مخ).

د خراج دیوان (یا د مالیې وزارت) د اموي دولت والي ربیع حارثي په ۴۶ هجري (۶۶۶ میلادي) کي د حسن بصري په مرسته په سیستان کي تأسیس کړ او دا هیواد ئې تر اسلامي اداري او قوانینو لاندي راووست

(هماغه ـ ۵۲۸ مخ؛ د افغانستان لنډ تاریخ: ۲۰۹ مخ). حسن بصري د څه موده له پاره د ربیع بن زیاد د کاتب (منشي) په حیث کار وکړ (موسوعه امام حسن بصري: ۱۱ مخ).

په هر صورت، حسن بصري (رح) چې څومره د توري او عمل سړی وو، په هغه اندازه د قلم او علم څښتن هم وو. څومره چې یو زړه ور مجاهد وو، هغومره عالم او متقي هم وو. نو ځکه ئې د خپل ژوند اوږده برخه پر عین مهال په دوو جبهو یعني جهادِ اکبر او د جهل سره په مبارزه کې، او جهاد اصغر او د جاهل سره په مبارزه کې تېره کړې ده.

حضرت حسن بصري (رح) د ژوند په وروستیو لسو کالو کې ډېر کمزوره سو خو داسې نه وو چې په بستر کې ولوېږي. هغه د دې کمزورۍ او ناتوانۍ سره سره د جماعت لمانځه ته ځان رساوه حتی د جنازې لمونځونو ته هم حاضرېدی. دیٔ د ۱۱۰ هجري کال د رجب د میاشتې په لومړیو کې په پنجشنبه د یو روایت له مخې د ۸۶ کالو او یو بل روایت له مخې د ۸۸ کالو په عمر وفات سو. شاګردانو ئې غسل ورکړ او د جمعې تر لمانځه وروسته خلک د ده د جنازې له پاره راوبهېدل تر دې حده چې هیڅوک په بصره کې پاته نه سو او په تاریخ کې د لومړي ځل له پاره د بصرې په لوی مسجد کې د خلکو د نشتوالي له امله د مازیګر لمونځ ادا نه سو. دا له نن ۱۳۲۷ قمري کلونه مخکې پېښه سوې ده.

موږ افغانان د حسن بصري (رح) د زحمت او دعوت پوروړي یو او د هرات او زرنج څخه نیولې تر هلمند، کندهار، زابل، غزني او کابل پورې ټول مسلمانان د هغه د لارښوونې، پوهوَنې او پېرزوینې ثمره یو. نو څومره به ښه وي چې یو پوهنتون ، یا یو کتابتون ، یا یوه اکاډیمي... د هغه په نوم ونوموو او خپله وفاداري وښیو. ځکه، موږ حق لرو چې حق ئې ادا کړو! الله دې ئې د ټولو مسلمانانو په شمول جنت الفردوس په نصیب کړي. والسلام

اړونده مأخذونه:


۱. طبقات ابن سعد (څلرم جلد)؛ محمدبن سعد، اردو مترجم: محمد راغب رحماني، نفیس اکېډمي، کراچي، ۱۳۹۰ هجري قمري.
۲. موسوعه فقه امام حسن بصري (رح)؛ ډاکټر محمد رواس قلعه جي، اردو مترجم: مولانا عبدالقیوم (لومړی چاپ)، ادارهٔ معارف اسلامي، منصوره، کراچي، ۲۰۰۲ میلادي.
۳. تذکرة الاولیاء؛ شیخ فریدالدین عطار، اردو ترجمه: الفاروق بُک فاونډېشن، لاهور، مې ۱۹۹۷.
۴. د افغانستان تاریخ؛ احمد علی کهزاد، ژباړن: اورنګ زیب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، کابل، ۲۰۱۰.
۵. تاریخ افغانستان بعد از اسلام؛ عبدالحی حبیبي، بنګاه انتشارات میوند، کابل، ۱۳۸۶ شمسي.
٦. افغانستان در مسیر تاریخ؛ میر غلام محمد غبار، مطبعه دولتی، کابل، ۱۳۴۶ (۱۹۶۷).
۷. د افغانستان لنډ تاریخ؛ عبدالحی حبیبي، مترجم: عبدالرؤف بېنوا، (اووم چاپ)، صدیقي خپرندویه ټولنه، کوټه، ۱۳۹۲ لمریز.
۸. تاریخ سیستان، نویسنده: نامعلوم؛ مصحح: ملک الشعرأ بهار ، مطبعه دولتی، کابل، ۱۳۶۶ شمسي.

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاري

عبدالهادي ملا

## غزل

ستا د سترګو په تيارو کي، جادوګر پټ د نکلو دئ
ستا د کور کوڅه درنه ده، دلته هر ګام په شرطو دئ

عبادت دی رمز د ميني، کاروبار ترازو نه دئ
غر د رحم تلای نه سي، ډېر نازک تار د تسپو دئ

د ګناه د حسرت پانګه، يو لمن د اوښکو وړانګه
رسوم يې رب جانان ته، دا سوغات د رڼو شپو دئ

چي سم درپ کاښي ګذار کړي، زمانې ته خپلخانې ته
دا مذهب د درويشانو، دا دستور د لېونو دئ

بيا د څښو څپې راغلې، خياله! بيا شېلې شېلې سوې
د تور بخت سترېي توسنه! بيا دې نوک په لګېدو دئ

د کافر کبر چنجيه! منجله جومات کي پروت يې
رياکاره رب دي غرق که! سر دي ځانته په سجدو دئ

عبدالهادي ملا

## غزل

هلالي خنجر د وروځو، چوکيدار ستا د لېمو دئ
نظر نه رسي تر سترګو، مخکي پروت فوج د بڼو دئ

وخته! ښې نچوړ نچوړ که، زړه مې ډک د ژوند له زهرو
خو پام مينه زخمي نه کړې، لا يې ګل په غوړېدو دئ

زه عشقي غزل شروع کړم، راځه ځي د رزم خوا ته
زما جانان وطن زخمي دئ، زما ارمان د جنګېدو دئ

د شهيدو وينو لهر، د مظلومو اوښکو قهر
صبر ونيوی تر ستوني، د زغم غر په نړېدو دئ

ښاريه کي د زردارو، د فقير خړکۍ کوډله
د ژوند لمر تندري نيولی، آسمان ژاړي په سلګو دئ

زه يې وينم د بخت ستوري، د اور ځاڅکي دي را اوري
چي پر ناست پردی غلام وي، هغه تخت د سوځېدو دئ

سعید وصال/استرالیا

## غزل

د طلب اور يې له وزره وځي
د زړه مرغۍ مې ستا تر دره وځي

ګامونه اخلي د وريځو پر غرو
د درد اواز رهي تر لمره وځي

اې د رڼا سالو ارزو مې ژغوره
د تيارې غشي تر قمره وځي

د ځکندن سلګۍ نغمې وجود ته
چې ستا په غېږه کې دلبره وځي

موږ که د دې دنيا تعمير کې يو پر
بله به څنګه بختوره وځي

چې سر يې نه رسي د هوش تر مزرعو
پرېږده چې شور يې له پرهره وځي

ستا د يادونو پر څپو خوبونه
شپو کې غوټې دي تر سحره وځي

وصاله راشي د ښکلا پيغمبر
اذري سترګې بې اثره وځي

نقيب قريشي

## غزل

ما هغې ته شعر وليکی، کومه چې ما ته انتظار کوي – يو روا شعر (زما هينداري ته)

زه د ژوند په شکايت يم، ته له مرګه په شکوه يې
زه د خدای د هيلو کور يم، ته د خدای د نور جلوه يې
د ساقي جانان په کور کې دوه روحونه په نشا دي
زه د عمر خُماري يم، ته د ژوند د ساز نشه يې
دا د عرش د خدای کرم دئ، دا د عرش مهرباني ده
زه د دې جهان بدرنګ يم، ته د دې جهان ښايسته يې
د شېخانو د ټګانو، د محل جنګې واوره!
زه نيمګړې د نړۍ يم، ته له هر څه نه پوره يې
ته رڼا د توري شپې يې، زه تياره د جهالت يم
زه د کرکي دوزخي يم، ته د کرکي اشيانه يې
بېله تا مې ژوندون څه دئ؟ سور دوزخ دئ، مې جنت دئ!
بس دا ښه دئ چې زه يمه، بس دا ښه دئ چې ته سته يې
د جنت د حورو ميري، جنت ټوله درته لوګی سه
د اووم جنت پر لاره، اووه واره فلسفه يې
ستا د ميني لاوا وينم، د کرکجن ښېلتون پر لاره
زه د تورو زهرو جام يم، ته د سرو ميو پياله يې
دا حالت د خدای رضا ده، د رمزونو په دنيا کې
زه و تا ته پر سجده يم، ته و ما ته پر سجده يې
د پکتيا د حُسن لمره، ټول راټول پر کندهار يې
زه کنګل د ساړه ژمي، ته د دوبي سره غرمه يې
د ښايست و کوه قاف ته، د لفظونو کمی راغی
نقيب ستا د ژوند سُرود دئ، ته د ده د ژوند نغمه يې

فدامحمداقبال

## غزل

نن ایږدمه مي خپل زړه ته د پای ټکی
د خوښی په نوم هر څه ته د پای ټکی
نور د ژوند ورځي مي نه اوړي په مینه
د ژوندون و دېواله ته د پای ټکی
څم چي ور یې کړم راکړي تنی ېبرته
نور مي ږدمه ګرېوانه ته د پای ټکی
بس د ټولي نړی خلک دي ژوند وکړي
فقط وي دي پښتانه ته د پای ټکی
څوک به څنګه د بریا پر لور قدم ږدي
چا چي ایښی دئ لمانځه ته د پای ټکی
د اقبال په نوم شرمېږي چوپه خوله ده
وایي نور دي وي هغه ته د پای ټکی

صدیق الله مین

## غزل

درد به زما ولي زړګی نه کوي
ته چي یې کړې داسي سړی نه کوي
اور ته به ناست وي دوی تر هغه وخته
تر څو لمبې کوي لوګی نه کوي
کله نا کله کوي خپل هغه څه
چي یې له چا سره پردی نه کوي
ورته مي روغ په مینه ورکړی زړګی
چي یې کړي مات داسي به دی نه کوي
مینه! دا سړي ته یمه حیران
چي ټولوي کاڼي غمی نه کوي

مقتصد ستری

## غزل

بیا راغلی کوم توپان پر دغه سیمه
لکه منی وي خزان پر دغه سیمه
پر دې ورور باندي دي غږ کړه چي را پاڅې
را ګډ شوي دي لېوان پر دغه سیمه
دا ګلونه غاړېېجن دي ساه یې خېژي
خدایه وکړې یو باران پر دغه سیمه
هله ژر شئ چي دا سیمه شي سمسوره
ژر شئ وکړئ ګلان پر دغه سیمه
په دې سېمه کي مین شاعر لوی شوی
څکه ډېر وي بلبلان پر دغه سیمه
د چا دید ته به تل ناست وې مقتصده
قربان کړی دي وو ځان پر دغه سیمه

هارون حکیمي

### محصلي

ته‌خو می ګرسره کي
هیڅ نه کېږي
خو!
راسه،
خیال دي؛
زما له‌سره‌واخله،
دا مزاحم؛
مي‌له‌درسونو باسي.
۲۰۱۳-۱۱-۲۷
چنډیګړ - هندوستان

حکمت سروش/کابل

# کندهار - ګڼوړ انځورونه

ښوان ولاړ دئ د کوهک د غره په سر کې
د ارغند د مستی ګانو برم ته ګوري
خامکي غاړه؛ خولی یې غمي داره
د ښنو ونو ښایستو و کوړم ته ګوري

د بابا پر سر کړه لونګی روان دئ
په زړګي کي اووه زره ارمانونه
د بابا صاحب مزار ته فکر وړی
په دوو سترګو کي یې دوه لکه دردونه

د ښایستې کمپس ښایسته دئ جل و بل دئ
د سربند هوا وهلی تور اوربل دئ
پر لاسو یې د نکریزو نخش جوړ دئ
په زلفانو کي یې سور د انارګل دئ

انا ناسته ده کیسې کوي ږغېږي
د روسانو، د خلقیانو پرچمیانو
د دې ښار د کنډوالو او تباهیو
د نامیانو، مسلمانو جهادیانو

دوه مین دي په دیدن پسي راوتي
دي روان د باغ پل په منظره دي
اوبو راوړل څو صدبلګه ګلابونه
او دوی دواړه د یو بل په تماشه دي

دوه ځوانان په دوو مورچو کي سره ناست دي
پر اوړو یې دي دوه ډوله بیرغونه
د یوه ښار د یوې کوڅې او ژبې
پر یو بل کړي د مرمیو ګوزارونه

ډله راغله و ډوری ته اتڼ جوړ دئ
په اتڼ کي بیا دا ځو یو څه نامیان دي
هلته لیري یو ځوک خاندي ځوک خوابدي
په ورقو کي کوټ سوي اوس سوختیان دي

فیل کلونه د دې ښار په ننداره دئ
ته وا ناست پر یوه لویه خزانه دئ
نه موسکی سو نه یې سترګي کله نم سوې
چوپه خوله د هر یو شور په تماشه دئ

ښایستوکي د مکتب بسته په شاه ده
د الجبر په سوالو کې فکر بند دئ
مونانکه وارخطا ده امتحان ته
له شنبې یې په نومرو کي فکر بند دئ

په دې ښار کي په لمبو کي ګل موسکی دئ
په غمو کي په دردو کي خوند روان دئ
لا د وینو په باران کي مینه کیږي
د مرګونو په سایو کي ژوند روان دئ

۲۰ مه اپریل، ۱۷ مه می ۲۰۱۵



څېړندوی رفیع الله نیازی/کابل

# په پښتو ادب کې د ماشوم د ادبیاتو لنډ تاریخي بهیر

پښتانه د ځمکې پر مخ په هغه سیمه کې مېشت دي، چې تل د تاریخ په اوږدو کې د زبرځواکو د بریدونو، تاړاکونو او تېریو ښکار شوي. جګړه هغه ناورین وي، چې ورسره د یو هېواد، سیمې او خلکو، اقتصاد، کلتور، فرهنګ، ادب او د ټولنیز ژوندانه نورې برخې یا خو چورلټ له منځه ځي او که له منځه ولاړې نه شي، نو له ډېرو ناوړو حالاتو سره مخامخېږي. د زبر ځواکو تاړاکونو نه یوازې دا چې د دغې سیمې د خلکو اقتصاد، کلتور، فرهنګ او ټولنیز ژوند ته نه جبرانېدونکې ګوزارونه ورکړل، ورسره ئې پښتو ادب هم له داسې حالاتو سره مخامخ کړ، چې سوونه کلونه وروسته هم پښتانه څېړونکې په دې نه دي توانېدلي، چې د هغه مهال د ادبیاتو کوم څرک ولګوي. له دغو ناورینونو سره د پښتو ادب لیکلي اثار په شعوري ډول د نیواکګرو په واسطه له منځه وړل شوي دي. د ژبو د ادبیاتو تاریخ په ژبو کې د شته وو نظمي او نثري اثارو له مخې پیلېږي. له موږ سره په پښتو ادبیاتو کې د زبات او تاریخي مخینې له مخې د امیر کروړ ویاړنه ده، چې د پښتو ژبې ډېر زوړ او پخوانی شعر ئې بولو او د سلم هجري کال په خواو شا کې ویل شوی دئ، نو د پښتو ژبې د لیکلي ادب تاریخ له همدغه مهاله پیلېږي. تر هغو پورې به د پښتو ادب

تاریخ پیل له همدغه شعر څخه وي، چې په پښتو ژبه کې تر دې دمخه وختونو اثار پیدا شي. د امیر کروړ په ویا ړنه کې د ماشومانو د ادبیاتو هیڅ ډول څرک نه لیدل کېږي، له سل هجري کال راهیسې له امیر کروړ څخه نیولې په تر تیب سره د ابو محمد هاشم ابن زیدا لسرواني ا لهلمندي البستي، شیخ رضي، نصر لودي، بېټ نیکه، اسماعیل خرښبون، شیخ اسعد سوري، شیخ تمین کاکړ، ښکارندوی غوري، ملکیار، غرشین، تایمني، قطب الدین بختیار، شیخ متي، بابا هوتک، شیخ ملکیار هوتک، زمینداوری اکبر، خلیل خان نیازی، زرغون خان نورزی، زرغونه کاکړ، رابعه، دولت محمد کاکړ، شیخ عیسی مشوانی، شیخ بستان بړېڅ، علي سرور لودي، مېرمن نېکبخته، شیخ محمد صالح الکوزی، ملکیار غرشین تایمني، سلیمان ماکو، محمدبن علي البستي، احمد لودي، شیخ کته، شیخ ملي، زرغون خان ، کجو خان رانیزی، بابړ خان، شیخ قاسم، الله یار خان جهان لودي، بایزید روښان، ملا الف هوتک، ارزاني خېشکی، علي محمد مخلص، ملا عمر، میرزاخان انصاري، دولت لواني، واصل، میرخان، امیر، ملامست، اخوند درویزه، عبدالکریم، خالق داد، عبدالحکیم، مصطفی محمد، ملا اصغر، عبدالسلام ، عمر خان ، شېرمحمد، رحیمداد، عبدالرحیم، احمد، اخون قاسم، بابوجان، د پښتو ژبې د نظم او نثر لیکوالا ن دي. د یادو لیکوالو له ډلي څخه ملا الف دئ، چې یوه مثنوي ئې ماشومانو ته د اخلاقي روزني په موخه لیکلې ده. دا هم د اوسني وخت له هغو ادبیاتو څخه چې موږ ئې د ماشوم ادبیات بولو ډېر توپیر لري.

اروابناد پوهاند صدیق الله رښتین د ملا الف په اړه وایي: "ملا الف هوتک د دوهمي دورې له مشهورو شاعرانو څخه دئ، دی پخپله زمانه کې یو ښه عالم وو د کلات په اطرافو کې ئې استوګنه کوله(۱)".

د ملا الف هوتک د شعر هغه بېلګه چې په مثنوي وزن کې ویل شوې او ماشومانو ته پکښې اخلاقي او دیني روزنه ورکړل شوې ده:

راشه واوره اې فرزنده<br>
تا ته وایم ارجمنده<br>
ته د پاک نبي پر لار شه<br>
د نبي پر لاره لاړ شه<br>
یو قدم له شرعي زویه<br>
بېرون مه اخله نېک خویه<br>
که بېرون یو قدم کښېږدې<br>
د نبي شرعه به پرېږدې<br>
نصیحت کوم و تا ته<br>
مه جاروزه بلي خوا ته<br>
تا ته وایم زما خان یې<br>
لاتر ځان راباندې ګران یې(۲)

د پښتو ادب د اوسني پیل شوي تاریخ له پیل څخه یا له لرغوني دورې څخه نیولې ان د خوشحال بابا تر زمانې پورې د لیکوالو او شاعرانو په نظمي او نثري بېلګو کې د ادبیاتو له مخې د پښتون ماشوم برخه ډېره خواره ده، خواره لا څه، چې بالکل د ماشوم د ادبیاتو په نوم پکښې څه نه تر سترګو کېږي. د روښانیانو دوره چې د پښتو ادب په وده او غنا کې ئې ستر رول لوبولی یعني په لرغونې

دوره کي ئې پښتو ادب ته ډېر څه ورکړي دي، له بده مرغه چې په همدغه دوره کي هم پښتون ماشوم د ليکوالو او شاعرانو له خيال او فکره ډېر ليري تللی او په دغه برخه کي څه هم نه دي شوي.

له (۱۰۲۲) کال راهیسي د پښتو ادب په نظم او نثر کي د پام وړ بدلون او پرمختک رامنځته کېږي، پښتو ادب د خوشحال خان ختک په څېر ليکوال پيدا کوي، خوشحال خان ختک نه يوازي دا چي پخپله ئې د پښتو ادب ناوې په خپلو پنځول شوو نظمي او نثري اثارو ښکلې کړه، بلکي خپلو اولادونو ته ئې هم داسي روزنه ورکړه، چي تر لمسيانو او کړوسيانو پوري ئې پښتو ادب ډېر ونازاوه. خوشحال خان ختک که څه هم د مشهور انګريز مستشرق (مېجر راورټي) په وينا چي (۲۵۰) اثار ئې ليکلي؛ خو د خوشحال خان د مبارزيي ژوند حالاتو او شرايطو د نوموړي له ډېرو اثارو څخه پښتو ادب بې برخي کړی دئ، اوس موږ د خوشحال بابا ، د خوشحال کليات، دستار نامه، هدايه، سواتنامه، طب نامه، فراق نامه، فضل نامه، باز نامه، فالنامه، اخلاق نامه، بياض، فرخنامه، منثوره باز نامه، عنايه، ابته، صحت البدن او زنځيري لرو. د خوشحال ختک په دغو ټولو کتابونو کي د ماشومانو ادبياتو ته ځانګړی شوی کوم اثر نشته، اما د ده په اشعارو او دستار نامه نومي کتاب کي ځيني ليکني او بيتونه شته، چي هغه خپلو زامنو او ماشومانو ته پکښې اخلاقي او تربيتي نصيحتونه کړي دي. د ساري په ډول ئې دلته ځيني هغه مثالونه را اخلو، چي نېغ په نېغه د ماشومانو له پاره يا د ماشومانو په باره کي ويل شوي دي. د خوشحال بابا دستار نامه نومی کتاب چي په (۱۰۷٦ هـ) کال ئې د هندوستان د رنتهبور په جېل کي ليکلی، د ښوونې او روزنې په ډول ئې د خپلو تجربو پر بنسټ شل هنره او شل خصلتونه او د کتاب په پای کي ئې د پايلې په ډول اخلاقي روزنه، ښکار او د شعر په اړه معلومات ورکړي دي.

دغه کتاب له پيل څخه تر پايه پوري د ښوونې او روزنې په اړه لارښوونه، زده کړه او تربيه ده، خوشحال بابا د دغه کتاب دوولسم هنر يوازي د ماشومانو تربيې ته ځانګړی کړی دئ، دی وايي: "اولاد يا زوی وي يا لور خو چي عورتنه په فرزند ډکه شي، نور يې تربيت لازم شي(۳)".

په همدغه هنر کي بل ځای وايي: "که هلک عالي فطرت وي تر دوه کاله پوري به سواد خوان شي اول دي قران ولولي، په قران کي پنج سوره، ايت الکرسي، الرحمن، تمامه عمه سپاره دي په ياد کا، بيا نحو، صرف، بيا فقه، تفسير، حديث، اقوال د مشايخو، علم طب دا دي ولولي(۴)".

خوشحال بابا په دغه هنر کي د ماشوم روزني ته له هغه مهاله پاملرنه کوي، چي د مور په نس کي وي، دنيا ته راشي، را لوی شي، په دغو ټولو پړاوونو کي ئې د هر ډول سړو تودو خيال ساتلو باندي ټينګار کړی دئ. خوشحال بابا زوی او لور دواړو ته په ښوونه او روزنه ټينګار کوي، د زده کړي او لوست يادونه ئې کوي. د دوو کالو په عمر تر هر څه

ږومبی ماشوم ته د قران زده کړه اړینه بولي، بیا د نحوي، صرف، فقي، تفسیر، حدیث، علوموزده کړه ورته اړینه بولي، نو په دې توګه خوشحال بابا د خپل وخت او زمان مطابق په شعوري ډول د ماشومانو په هکله دغه ډول څرګندونې کړې دي.

د خوشحال بابا پر دستارنامه سربېره په نورو اثارو کې هم د ماشومانو له پاره اخلاقي او تربیتي لار ښوونې شته دلته ترې د بېلګې په ډول څو ساري را اخلو:

"هغه مور او پلار به خلاص نه وي له غمه
چې فرزند ځني زوولی بداخلاق وي(۵)"

خوشحال بابا وايي مور او پلار چې د اولاد په روزنه مکلف دي باید په سمه توګه د خپلو فرزندانو پالنه او روزنه وکړي. په تولنه کې د یو ګټور، فعال او ښه انسان په توګه د اوسېدو په اړه بل ځای داسې وايي:

"څو چې وزېږي د پلار د ځان بلا شي
په خدمت په تربیت شي ګرفتار
چې تندرست تر او تازه وي پرې خوښېږي
د زړه نول ئې وي لړ شان بیمار
چې د خپل قوت څښتن شي دماغ واخلي
د ځوانۍ له خیاله سم نه ځي پر لار
له خودۍ نه هسې مست بېخوده لاړ شي
خو یوزه یم چې پیدا شوم په دا دار
وقت ئې هیڅ د وړوکوالي په یاد نه وي
چې به پروت وې په اورنې کې خوار وزار
توان طاقت د مچ شړل ور څخه نه و
نصیحت د مور او پلار وي ورته نار(٦)"

خوشحال بابا خپل بچې ته د علم او د زده کړې په اړه په خپله یوه رباعي کې داسې ویلي دي:

"چې علم وکړې عزیزه زویه
فهم په علم په عمل بویه
کمکه ونه بارداره ښه ده
نه پلنه ونه بې باره لویه

چې نه ادب لري نه علم رای لري
دوپای لیده شي خوی د چارپای لري
چې بې ادب وي ادم ئې مه ګڼه
نه شو که شکل ادم نمای لري(۷)"

که د خوشحال بابا ټول اثار ژور مطالعه شي ښایي د ماشومانو د روزنې او پالنې او هغوی ته د اخلاقي روزنې په اړه پکښې ډېرې بېلګې پیدا شي، خو دا خبره هم د هېرولو نه ده چې د خوشحال بابا په اثارو کې په علمي او سیستماتیک ډول او هغه څه چې نن سبا ئې مورږ د ماشومانو ادبیات بولو په هغه ډول څرګ هم نه لیدل کېږي، معنا دا چې خوشحال بابا په شعوري توګه د ماشوم د ادب په معنا هغه څه چې ماشوم ئې ولولي، خوند ورکړي، د ماشوم له ژوند او منګ سره برابر څه وي، چې د ماشومتوب دنیاګۍ ور روښانه او څه ترې زده کړي هیڅ څه هم نه لري.

د خوشحال بابا زمانه کې د ده د کورنۍ او نورو پښتنو لیکوالو او شاعرانو څخه جمال خان، اشرف خان هجري، عبدالقادر خان، صدر خان، سکندر خان، ګوهرخان، بهرام خان، حلیمه ختک، خواجه محمد بنګښ، محمد، شیخ قاسم، نعمت الله هروي، هیبت

خان کاکړ، شیخ عباس سرواني، حاجي محمد عارف، امام الدین، کاروان خان، حسین خان افغان، ابراهیم بېټنی، مولانا عبدالوهاب، اخوند چالاک، مولانا نور محمد، مولانا احمد شاه، پیرسباک، محمد یوسف، عبدالله، الله داد، میاداد، مسري خان او د ځینو نورو په اثارو کي د ماشوم د ادبیاتو تر عنوان لاندي څه نه موندل کېږي. تر خوشحال بابا راوروسته د رحمان بابا په اشعارو کي یوازي د اولاد، فرزند یا زوی نومونه یاد شوي دي.

له دغو لیکوالو او شاعرانو راوروسته عبدالحمید مومند د پښتو ادب د نازکخیالي شاعرۍ د اسمان ستوری دئ. د ده په اشعارو کي هم یو نیم ځای د ماشومانو د روزني او تربیې په اړه یو څه ویل شوي دي، دی په خپلو اشعارو کي د اولاد د تربیې او روزني په اړه وایي:

"نازولی زویه نه اخلي ادب
او د سیوري نخل نه نیسي رطب
ونیومه شه هغه زوی په خوا پوري
چي ئې نه نیولی درس وي نه مکتب
په غوجل کي باري خر او کچر ښه دی
نه په خونه کي جاهل او بې طلب
چي پیدا شي یو ناکس په قبیله کي
وړاندي وروسته حبطه کاندي نسب
د پسر په نېکو بدو پلار یادېږي
دا خبر دی په جهان کي مجرب
په سواره باندي گوته شي ایښوده
چي ئې اس برابر نه ځي په جلب
په زړه مهر په خوله قهر زوی ته بویه
څه ښه وایي چیر ته ډېر هلته ادب(۸)"

یو هغه څه وي چي د ماشوم ادبیات گڼل کېږي او یو هغه څه وي، چي د ماشومانو په اړه څه لیکل کېږي، د حمید بابا په اثارو کي هم د ماشوم د ادبیاتو په مفهوم او معنا هیڅ نه لیدل کېږي.

تر حمید ماشوخېل وروسته ان تر (۱۲۹۷) هجري کال پوري چي د پښتو ادب له معاصري دورې سره سمون خوري په پښتو ژبه کي د نثر او نظم په برخه کي سلگونه لیکوالان پیدا شوي، خو په شعوري توگه ئې د ماشومانو د ادبیاتو په برخه کي څه نه دي کړي.

د لومړي ځل له پاره په شعوری توگه د ماشوم د ادبیاتو په نامه ځانگړي ادبیات په لوېدیز کي راوتوکېدل او بیا د نوري نړۍ د اولسونو هم دغي برخي ته پام شو او په دغه برخه کي ئې د کار په کولو خپلو ماشومانو ته خپل رسالت ادا کړی دئ. په افغانستان کي هم د ماشوم د ادبیاتو په برخه کي په رسمي توگه، چي کوم څه د لومړي ځل له پاره پیل شوي الهام ئې له لوېدیزې نړۍ څخه اخیستل شوی دی، داسي چي د هغه مهال د افغاني حکومت ځینې لوړپوړي چارواکي او په ځانگړي ډول محمود طرزي د ځینو نورو هیوادونو په گډون ترکیې ته هم رسمي سفرونه درلودل، ترکیه که له یوه اړخه یو اسلامي هیواد دئ، نو له بله اړخه د لوېدیزې نړۍ نږدې گاونډۍ ده. هر بدلون او خوځښت چي په لوېدیز کي راپیدا شوی، په یو نه یو ډول ترې ترکیه اغېزمنه شوې ده، نو دغه هیواد ته د هغه مهال د افغاني چارواکو

ورتګ او له ترکیې سره نږدې اړیکي ساتل پر افغانانو هم اغېزه وکړه هماغه وو، چې محمود طرزي له وخت او خپلې زیرکتیا څخه په ګټې اخیستنې سره د سراج الاخبار جریدې په اډانه کي چې لا دمخه یوه فعاله رسنۍ وه په (۱۲۹۷) هجري کال د (سراج الاطفال) په نامه د کوچنیانو له پاره یوه برخه ځانګړې کړه. د ماشومانو دغه د (سراج الاطفال) جریده به د سراج الاخبار تر څنګه په هرو پینځلسو ورځو کي یو وار خپرېده، سره له دې چې اوس په افغاني کتابتونونو کي د سراج الاطفال ټولې ګڼې نشته یوازي په عامه کتابتون کي ئې شپږ متفرقي ګڼې شته، په دغه جریده کي هم د پښتو ژبې برخه خواره ده او په پښتو ژبه پکښې څه نه تر سترګو کېږي. په هر صورت په افغانستان کي د ماشوم د ادبیاتو رسمي پیل او په دغه برخه کي په شعوري توګه کار کول له همدغې جریدې څخه راپیلېږي. تر سراج الاطفال وروسته په کندهار کي د حبیبي صاحب په مشرۍ طلوع افغان او په کابل کي د پښتو ټولنې (زیري) جریدو د ماشومانو د ادبیاتو په برخه کي لیکنې خپرولې. بیا نو په (۱۳۳۹) هجري کال د انیس ورځپاڼې په اډانه کي (د وړو انیس) تر عنوان لاندې په پښتو او دري ژبه د ماشوم د ادبیاتو په برخه کي کار کېده، ورپسې د (کوچنیانو ږغ) مجلې هم ټولې لیکنې د ماشومانو په اړه او د ماشومانو له پاره وې.

همدغه ډول په لره پښتونخوا کي هم ځیني خپروني وې چې د کوچنیانو د ادبیاتو په برخه کي ئې کار کړی، چې له ډلې ئې د جمهوریت مجلې (د ماشومانو مجلس) د رهبر مجلې (په ماشومانو زیری) د ګلستان مجلې (د ماشومانو نړۍ) د غنچه مجلې (د ماشومانو صفحه) او د اولس مجلې (د ماشومانو محفل) په نومونو صفحې خپرولې، همدا راز په دې لړ کي په دې وروستیو کي له کابل څخه خپرېدونکې په پښتو ژبه یوه بله مجله ګوربت چې اوس نه خپرېږي هم (د کمکیانو ګوربت) په نامه برخه د ماشومانو ادبیاتو ته ځانګړې شوې وه. او اوس اوس په کابل کي د مصور خپرندویه بنسټ په نوښت ماشومانو له پاره کتابونه او رسالې چاپېږي او د ماشومانو ادبیاتو ته ځانګړې شوې د (مصور) په نامه یوه مجله هم خپروي او د مصور په نامه انټرنیټي ویبپاڼه هم لري. له جریدو او مجلو سره سره هغه مهال یو شمېر نوښتګرو پښتنو لیکوالو یوازې په یوه نیمه لیکنه بسنه و نه کړه، بلکي په دغه برخه کي ئې د قدر وړ ګامونه پورته کړل او اثار ئې وپنځول.

په پښتو ژبه کي یو شمېر لیکوالو د ماشومانو له پاره او یو شمېر نورو بیا د کوچنیانو په باره کي لیکنې کړې، دلته موږ په ترتیب سره هڅه کړې لومړی د هغو لیکوالو نومونه یاد کړو چې د ماشومانو له پاره او یا ئې د ماشومانو په اړه کتابونه لیکلي، یعني په دې برخه کي اثار لري، بیا به د هغو لیکوالو یادونه وکړو چې ماشومانو ته ئې کتابونه ژباړلي او بیا به هم د هغو لیکوالو چې هغوی لا تر دې دمه کوم ځانګړی اثر ماشومانو ته نه لیکلی او نه ژباړلی؛ یا ئې یوه نیمه کیسه یا شعر لیکلی وي او یا ئې ژباړلی وي، ورپسې به د هغو لیکوالو له

نوموڼو سره اشنا شو چې په ځينو راډيوګانو کې ماشومانو ته ښوونيزې او تفريحي خپرونې جوړې کړې دي. د يو شمېر ليکوالو د نوموړو او د هغوی د اثارو په اړه مې د ښاغلي اصف بهاند له کتاب (د کوچنيانو ادبيات) او د نورو په اړه مې پخپله پلټنه کړې ده ما خپله ټوله وسه کړې، خو که بيا هم په دې برخه کې رانه د کوم ليکوال نوم پاته وي ما دې وبخښي. په پښتو ژبه کې تر کومه بريده چې ما ته معلومه ده، نو دغه ليکوال د ماشومانو په برخه کې د ځانګړو اثا رو درلودونکي دي: د حافظ محمد ادريس: (خوږې لطيفې، د طورو زړې قيصې، کېږی، ناديده)، د پروفيسور ولي محمد سيال کاکړ: (د کوشنيانو ادب، د کوشنيانو ژبه، پښتني فوکلور)، د همېش خليل: (ادم خان او درخانۍ، د نېکۍ بدله، وړې کيسې، مومن خان او شيرينۍ)، د پروفيسور محمد نواز طاير: (د ماشومانو سندرې او صوتونه)، د استاد حبيب الله رفيع: (لاسي نجلۍ، د تمدن سوغات، وو نه وو، تمه ډرامه، د خلکو سندرې او زرينې ځانګې ځينې برخې)، د محمدعثمان نژند: (د وړکتوب دنياګۍ ته، په ماشومانو کې د تفوق او لوړتابه حس)، د محمد عثمان نژند او غلام حضرت روغمن: (تنکۍ هيلې، د ماشوم ګلونه) د اصف بهاند: (د کوچنيانو ادبيات)، د غلام الرحمان جګړ: (د ماشومانو ترانې)، د حبيب الله زړه سواند: (زه چې ماشوم وم، سپينه کوتره، د ګلانو نړۍ)، د محمد نواز حقيقت: (ختين کورونه، د هيلو غوټۍ، د رڼا لاره، سپينه کوتره)، د عبدالکريم پتنګ: (د ماشومانو سندرې)، د سلطان محمد صابر: (اوس که ورکوټی یم ځلمی به سمه)، د استاد محمد اسماعيل يون : (ساينسي پرمختياوې)، د نورالحبيب نثار: (د ماشوم نړۍ) د علم ګل سحر: (ستورې، بې ځايه غرور)، د عبدالغفور لېوال: (د ماشومانو سندرې او غوره بوختياوې)، د اجمل تورمان: ( د ادم خان لالا نکلونه، زړه ښزو)، د ډاکټر محمد فريد بزګر: (اصف د بلا په لومه کې)، د عرب خان عر ب: (پايلې)، د عبدالحميد مموزي: (تربيتي کيسې، خوندورې کيسې)، د انجينر عبدالله هاشم خېل: (ديني لارښود)، د بهادرشاه ظفرکاکاخېل: (د سروزرو سيند)، د عبدالغفار ګرديزي: (کاشکي زه کوتره وای)، د محمد حفيظ صحرايي: (د کوچنيانو کتاب)، د فاروق فردا، محمد نوازحقيقت، محمد عثمان نژند او غلام حضرت روغمن (د لمر ترانې)، د نصرالله خان نصر: (لنډې قيصې)، د شاهين فاروقي: (ناروغ ماشوم)، د ډاکټرې زرغونې زېور: (دا هلکان) د نجيبې لېمې: (له خرکې سره کيسې)، د غلام حسين ښوس: (ولسي لوبې) د محمد رفيع: (د ماشومانو ګل غنچه)، د عبدالرحيم دراني: (د کوچنيانو روزنه)، د نورمحمد لاهو (د غوا دېګې)، د سيد عبدالله ولي زي: (د ماشومانو له پاره اسلامي لارښود)، د عبدالرحمن حبيب زوی: (نری نری باران دئ)، د نعمت الله اندړ: (اصلي خبره)، د عبدالقيوم مشواني: (انسان په نا اشنا جزيره کې)، د مساپر رييس خېل: دوه بازاري ګاونډيان، د پوهندوی نصرالله ستانکزي: (د کوچنيانو حقوق)، د محب الله زغم: (ځيرک الوځې)، د نعيمې غني : (اتل به ستورې راوړي، ناچاپ)، د راحلې نورې: (د ماشومانو د خپلو ليکنو او بيوګرافۍ مجموعه، ناچاپ).

يو شمېر د خير ښېګڼې موسسو او ادارو هم افغان ماشومانو ته په پښتو ژبه انځوريز کتابونه چاپ کړي، دلته به د ماشومانو د هغو انځوريزو کتابونو نومونه را واخلو چې تر دې دمه د بي بي سي راډيو تعليمي پروژې خپاره کړي دي: (که سوله وي، زمری او کليوال، درې غوايان او يو لېوه، احمد خېل پلار ژغورې، سره چرګه، په ځنګله کې اور، کوتره او کارغه، سپينږيرې او د هغه زامن، سوی، د صابون کيسه، غنم لو، خزانه، هلک او

توپک، پوزی اوبدونکی، طلایي کب، د جانداد کیسه، خپل هیواد ، نیکمرغي او بد مرغي، زمری او موږک، مېږی او کوتره، مرغلره، کونډه ښځه او پیشو، لټون، مورنۍ مینه، زمری او غلام، د ذحل کیسه، کیسې، پلرنی کور، پتنګان، وړه مرغۍ، هوښیاره نجلۍ. ځینو نورو موسسو هم ماشومان له پار ه کتابونه چاپ کړي دي هغه کتابونه چې ماته معلوم دي دا دي:

د پروګرس نشراتي موسسې: (افسانوي اس، رسم شوي قصې، کمکی ځناور، هر څوک پخپل دستور ژوند کوي)، د رادوکا موسسې له خوا: (پیل، فولادي کوټې، د کوچنیانو دپاره کیسې، لومړی کتاب، د دانکو سوځېدونکی زړه، د ساعت په باره کې څه معلومات)، د ښوونې او روزنې وزارت د تالیف او ترجمې ریاست له خوا: تنکۍ (هیلي) د محکمه نشرات و اشاعت قبایل له اړخه: (خوند ناکې قصې د ماشومانو له پاره، د مصور خپرندوی بنسټ خپاره کړي: درې واړه ملګري ښوونځي ته ځي، له خواړه تیکلي جوړ هلک).

هغه لیکوال چې په پښتو ژبه ئې د ماشومانو په باره کې یا ماشومانو ته له نورو ژبو اثار ژباړلي دا دي: د استاذ قیام الدین خادم ژباړه: (د کوچنیانو اخلاقي پالنه) د نادر جلالي ژباړې: (د پرانګ خورخه، کوچنیان، مېږی او کیهاني پیلوټ، سور چورګوری، شو کتاغان. غیر عادي مسافرت) د حافظ محمد ادریس ژباړې: (تعلیمي کیسې، اسلامي کیسې)، د ډاکټر محمد فرید بزګر ژباړې: (خدایه موږ له دې بلا څخه وساتې، د سند باد پېښې، د طرابلس زمریان، زمری د مخدره موادو په اړه حقایقو څخه خبر شي، د نشې زهر)، د حبیب الله زړه سواند ژباړه: (سپینه ډوډۍ)، د اسفندیارخان او رحیم الله نورزي ژباړه: (د حیواناتو نکلونه) د احسان ارینزي ژباړه: د میني افسانه)، د زبیر شفیقي ژباړه: (د پیغمبرانو کیسې) د فاروق ژباړه: (لقه موټر)، د عبد السمیع حمید ژباړه: (د واورو لوبې) د شازیریوال ژباړه: (رسم شوي کیسې) د تاج ملي ژباړه: (زمونږ سترګې او زمونږ غاښونه) د قاسم یار ژباړه: (درې خرسه) د ډاکټرعطاالله زیارمل ژباړه: (ماشوم روزنه) د مختاراحمد احسان ژباړه: (زما سوی) د ډاکټر ګل محمد نورزي ژباړه: ( لومړی ماهي، یوشکا) د ډاکټرمصطفی رسولي ژباړه: (د سپین سري همرا د ختو کیسې) د ماري خلیل ژباړه: (سره چورګرې او دوکه بازه ګیدړه) د صفیه حلیم ژباړه: (د سند باد اووه سفرونه) د نادر جلالي ژباړې: (سور چرخول لرونکی چرګوټی، کوچنیان) د خپلواک ژباړه: (د ښار مکتبونه او د کلي مکتبونه) د عبدالروف عاکف ژباړه: (مچ او ماشي زموږ دښمن) د ډاکټر عبدالرحمان زماني ژباړه: (موږ څه وخورو)، د عبدالسمیع حمید ژباړه: (د ورو لوبې) د پروفیسور عبدالرسول امین ژباړه: (وړوکی ماشوم او کلک خواږه) د همایون هوتک ژباړه: (رینټینې بوټبه) د پوهنوال لطف الله ساپي ژباړه: (هوا او اوبه) د اناهیتا روهي ژباړه: (اسمان او ځمکه)، د نورګل شفق ژباړه: (د جان ګل شینو)، د ښکلا احمدزی ژباړې: (د خزان لټون، په ژوبڼ کې ځناور دي، پیشو بکس غواړئ، مچۍ بنګېږي)، د مشعل ختګر ژباړې: (غرونه او اور شیندنه، وروستی او وراندي)، د جاوېد اوربل ژباړه: (که چیرې یو موږک ښوونځي ته یوسي).

او دا هم د هغو لیکوالو نومونه چې ماشومانو ته او د ماشومانو په باره کې ئې خورې ورې لیکنې یا ژباړې کړې دي: مولوي صالح محمد کندهاری، پوهاند عبدالحی حبیبي، عبدالروف بېنوا، ګل پاچا الفت، غني خان، علي محمد منګل، سید محي الدین هاشمي، خوږیانی، غروال شینواری، ریدی ژواک، ښادمن، رحمان الدین اکبري، شېرخان ولسیار، زرین شاه ظفر کا کا خېل، میا الهام ، ګل نسیم کا کا خېل، حجاب ګل، مصنف

گل، عبدالرحیم خان، محبت خان، تاج احمد، سردار علي خان، سید شوکت علي شاه، محمد اعظم ارباب، رفیعه ارشاد، شاهد پروین، نجم الهادي زاخېلی، جاوېد اقبال، بدرالزمان شاه، ظفر اقبال، عطامحمد، عبدالحکیم، ابوالخیر ځلاند، عبدالباري اسیر، حبیب الرحمان پانیزی، شاهده نسرین، خواجه محمد، حمید وردګ، مهریه هوتکي، سرورزی، شهوا، نجیب الله، نورالله لودین ، ګرندي، اجمل روهي، احمد برېښی، زمری کلیوال، خوشحال روهي، محمد اصف فهیمي، ډاکټر محمد اکبر اکبر، محمد معصوم سهاک، محمد اسماعیل څره بن، زرغونه ایاز خاخۍ، احسان ارینزی، فارق فردا، نورمحمد دوست، محمد بصیر امیري، محمد ایوب، محمد جان فنا، استاذ اسدالله غضنفر، ډاکټر زیارمل، نازو پسرلی، سلیمان سلیم، عبدالله الهام جمالزی، عصمت الله خاروان، سمیع الله خالد سهاک، ارش ننګیال، اجمل تورمان، محمد نبي تدبیر، ګل اغا احمدي وردګ،توریالی مالیاراو رحیم الله بشارت، رابعه غرشین، سوله نیازی، ورمه فضلي، ګله مینه یوسفزۍ.

بي بي سي راډیو له (۲۰۰۱) میلادي کال راهیسي په پښتو ژبه د ماشومانو له پاره ښوونیزي، روزنیزي او تفریحي خپروني لري، که څه هم یو شمېر نوري سمیه ییزي راډیوګاني هم شته، چي د ماشومانو له پاره یو نیم ښوونیز پروګرام لري، خو په دغو ټولو راډیو ګانو کي افغان ماشومانو ته د بي بي سي راډیو خپروني د څومره والي او څرنګوالي له مخي تر ټلي هري راډیو په لومړي کتار کي ځای لري . په دغو راډیو ګانو کي یو شمېر پښتانه لیکوال کوچنیانو ته د ښوونیزو خپرونو په جوړولو بوخت دي، د ماشومانو د ادبیاتو په برخه کي د دغو لیکوالو کارونه د قدر او پام وړ دي، نو لازمه ده چي د دوی نومونه هم د ماشومانو د ادبیاتو د لیکوالو په ډله کي ولیکل شي.

بي بي سي راډیو د ماشومانو له پاره د (زموږ نړۍ زموږ راتلونکې) په نامه د ښوونیزو خپرونو لړۍ لري چي د اسرارو پرده، د ژوند کیسي، د ښنجاري خورجین، یوه مانۍ او زر دریڅې او د ځېرو او سیمو په نومونو خپروني لري، چي ډېرو لیکوالو د وخت په تېرېدو په دغو خپرونو کي ماشومانو له پاره ښوونیز پروګرامونه لیکلي او جوړ کړي دي، د دغو لیکوالو له ډلي ئې یو شمېر اوس په نورو ادارو کي په کار بوخت دي او ځیني ئې اوس هم دغلته راډیویي خپروني جوړوي، چي نومونه ئې په دې ډول دي: عبدالمجید لودین، عبدالنافع همت، اجمل اند، عبدالهادي هادي، انور وفا سمندر، اکرام الدین سروري، محمد ظاهر شمس، خواجه غریب فطري، درمل مکمل، رفیع الله نیازی، محد اصف عمر، ارش ننګیال، ذبیح الله شاکر، عارف لودین، محمد انور اندړ، عارفه عمر لور، نوشابه اشنا، زرغونه کرګر، عارفه بهارت صابر، ثریا ځاځۍ، ناجیه نجات، فریده نایبي، طوبا ندا ساپۍ، اسما کاکړ او تهمینه الکوزۍ.

ماخذونه:


۱. رښتین، صدیق الله (پوهاند)، د پښتو ادب تاریخ، پښتو ټولنه، ۱۳۲۵ کال، ۳۷ مخ.
۲. برنی اثر، ۳۸ مخ.
۳. ختک، خوشحال، دستارنامه، پښتو ټولنه، ۱۳۴۵ کال، ۶۵ مخ.
۴. پورتنی اثر: ۶۶ – ۶۷ مخونه.
۵. بهاند، اصف، د کوچنیانو ادبیات، دولتي مطبعه، ۱۳۶۶ کال، ۱۴ مخ.
٦. پورتنی اثر: ۱۵.۱۴ مخونه.
۷. بیا هم برنی اثر، ۱۵ مخ.
۸. صمیم، اصف، د عبدالحمید مومند کلیات، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۳ کال، ۳۶.۳۵ مخونه.

پوهیالی حضرت ولي هوتک

# خاموش استعدادونه

الله پاک انسان ته ډېر پیاوړی فکر او غوره استعداد ورکړی دئ. قران عظیم الشان انسان په ډېرو آیتونو کي تفکر او تعقل ته رابللی دئ او یو ساعت فکر کول ئې تر سلو ساعتونو عبادت غوره بللی دي.

په دې کي د خدای تعالی د هدایت لوی حکمت دئ او بل دا چي الله (ج) دواړه هم نر او هم ښځه فکر کولو ته اړ کړي دي . ښه فکر هغه څوک کوي چي پوهه ولري او پوهه په زده کړه کي ده، د زده کړي له پاره ئې علم پر نر او ښځه باندی فرض کړی دئ. نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي چي: زده کړه وکړئ آن که په چین کي وي! زموږ ځیني افغانان زده کړي ته هیڅ ارزښت نه ورکوي، نو ځکه مو ژوند تریخ دئ او له هغه رسالت څخه بې برخي یو کوم چي خدای تعالی انسان ته د ځمکي پر مخ ورکړی دئ. هغه رسالت د ده خلافت دئ. خلافت په پوهي سره کېږي، نه په جهل سره. زموږ د ناپوهۍ یو دلیل دا هم دئ چي خپلي لوني درس ته نه پرېږدو. په دې توگه مو نیمه ټولنه په خپل لاس د جهل توري کندي ته ټیل وهلې ده.

حال دا چي میندي مو راتلونکی نسل روزي، هغه نسل چي باید د ځمکی پر مخ د خدای تعالی خلیفه وي. خلافت په تعقل، سواد، پوهي او دانش سره کېږي او ځیني وخت که مو لوڼي تعلیم هم وکړي، موږ ئې د تفکر ساحه، د وینا آزادي، د عمل ډگر او د نوښتونو او په ټولنه کي ئې رغنده کارکولو څواک محدود یا ئې بیخي ورڅخه اخلو. میرویس نیکه نازو انا روزلی وو، نازو تعلیم درلود او په ټولنه کي فعاله وه او یوه هوښیاره ښځه وه، خلگو ته ئې نېکي مشورې ورکولې، نو ځکه ئې نوم تر اوسه یادېږي.

د اوسنیو پښتنو د تباهۍ او بربادۍ همدا یو لوی لامل دئ، چي خپلي لوني تعلیم ته نه پرېږدي او لوني که مو هر څونه با استعداده او پوهي وي، د کار او تفکر ساحه ورته نه ورکوو، نو ځکه نن نه نازو لرو او نه رابعه او نه بي بي نېکبخته. او دا د خپلي کورنۍ او ټولني د تباهۍ پلان دئ، دا له دین سره دښمني او د الله (ج) له حکم سره جنگ دئ او دا خپلي پښې په خپله په تبر وهل دي. باسواده خویندي د خپلو ورونو ښه قدر کوي، پوهي مېرمني ښه اولاد تربیه کوي، تعلیم یافته مېرمني د خپلو هیواوالو ښځو له پاره ښې ډاکټراني او ښې ښوونکي کېږي، باسواده مېرمن ښه کور سمبالوي. ای هیواوالو خویندو ته موقع او فرصت ورکئ چي نوښت ولري، له خپل استعداده استفاده وکړي، آزادی ورکئ، تعلیم ته ئې وهڅوئ او د لوی پروردگار په وړاندی خپله غاړه خلاصه کړئ.



ژباړونکی: ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

# د غور تاریخ

## شنسباني سلطانان او د غور شاهان

سرلوستی:

زه یوه پخوانی لیکنه له فارسي ژبې څخه در پښتو کوم. دغه د منهاج سراج جوزجاني طبقات ناصري اثر دی، نوم دي ئې پاینده وي. دغه لیکنه، چې دوه ټوکه لوی کتاب دی، د لوی استاد پوهاند علامه عبدالحي حبیبي په زیار او همت سره د اوز نسخو تر کتنې او مقایسې او مقابلې وروسته، د لوستونکو د پوهاوي له پاره چاپ او وړاندې کړل سوی دی. د دغه لوی استاد نوم دي هم پاینده وي.

څنګه چې پښتانه په لوی اکثریت سره له ډېر پخوا څخه یو وګړی، قوم پاته سوی دی، ښایي یو عامل به ئې د اجتماعي او عقیدوي چاپېریال نه مساعدت ؤ، او لا به هم وي او لاهم دی. په دوی کښې د پوهاند حبیبي او پوهاند رشاد غوندي تحقیقي کارونه بل چا کړي نه دي، دا چې څنګه باید وکړای سو چې د دوی له تحقیقي آثارو څخه مو نور څوانان بهرمند کړي وي، د پوهنتون د اجتماعي مضامینو د استادانو کار دی، دوی باید خپل شاګردان هڅولي او اړ ایستلي وي چې د دوی پر یوه-یوه اثر باندي ئې مونو ګرافونه کښلي وي، مقصد مي دا نه دی چې د دوی آثار دي خلاصه کړل سي.

نیت ۇ مراد مي دا دئ چې د دوی په آثارو کښې وگرځي، و ئې پلټي او ځان يوې پايلامې ته ورسوي، يوه ورځنۍ موضوع د دوی د آثارو په استناد سره يا رد يا تصديق کړي.

چې غـوټې پسې وهې په لاس به درسي
چاوې دا چې په درياب کښې گوهر نسته
رحمان بابا

يو بل ساده او اسانه کار هم کولای سو، هغه دا چې استادان او زدامندان يا زدامنداني د نومړو- استادانو کتابونو پر يوه- يوه باب يا فصل باندي نورو هوامندانو ته هم بيان ورکولای سي او هم يوه مقاله پر کښلای سي، تاسي له دغي لارې ځخه د دوی او هم د نورو پوهانو محقيقينو، مؤرخينو، فلاسفه وو، سياسيونو او اديبانو په معلوماتو، افکارو او نظرياتو سره نور هوامندان، زدامندان او زدامنداني بهرمند کولای سئ، په دغه کار سره به مو د خپلي ټولني پوهاوی حاصل کړئ او علمي سويه به مو ور لوړه کړې وي، دوی به د ښو معلوماتو خاوندان سوي وي، ورځپاڼي، جريدې او مجلې له پاره به مو مقالي پر ورکښلي وي.

زما د دغي ژباړني بل نيت ۇ مراد دا دئ ځو دا مي ښوولي وي چې په غور او غرجستان کښې پخوا ځوک اوسېدل او اوس هورې ځوک او سېږي، ولي څه پېښه سوې وه او څه پېښه سوې ده؟ اجتماعي تاريخي پېښي دي چې گوندي ځوک به ئې سر او پای وموندلای سي او بيان کړای سي.

له دغي ليکني ځخه بل نيت ۇ مراد دادئ چې د منهاج سراج غونډ کتاب بيا چاپول، گران کار دئ. مگر بل پوهاند حبيبي غوندي شخصيت مو موندلئ وي، خو لا بيا به هم د ډېرنيانو و لاس ته ورغلي نه وي، په اوس کښې خو ئې داسي ښائېدنه نسته چې غونډ کتاب دي تکثير کړه سوئ وي، مگر يوه- يوه برخه ئې وژباړله سي او په مجلو کښې چاپ کړه سي، هغه به هم و دغه نسل ته مهيا سوې وي او هم ښايي و ځينو نورو ته.

ای وای چې په دغه نسل کښې موږ ډېر لوستي کسان لرلای.

دغه اوس، څه گړی تر مخه، له ما ځخه يوې نجلۍ پوښتنه وکړه چې ولي د دغه ځای او هغه ځای ډېر خلگ په حکومت کښې دي، خو د لوی کندهار زدامندان او زدامنداني د نست برابر دي؟

ما ورته وويل چې د لوی کندهار و خلگو ته پر پمانه خواړه او مېوه ور رسېږي، نو دوی ودې ته اړه نه دي چې د بل کار يا حکومتي کار معاش موندني له پاره ئې زدکړي کړي وي.

که دوی د تنگو درو د خلگو غوندي نه بسيا خواړه لرلای، نه ئې سرباری (اضافه) حاصلات لرلای، دوی به هم و زدکړو ته اړوتلي وای، د تنگو درو د يوې ولسوالۍ زدامندان او زدامنداني چې له دوولسم صنف ځخه فارغان سوي دي، شمېر ئې د کندهار تر غونډ ولايت ځلور- پنځه گرايه ډېر دئ، دا ځکه چې دوی اړ دي او کندهاريان اړ نه دي.

زما ډوغ (وروستنئ) نيت ۇ نيامت دا دئ، ځو موندلي مي وي چې (گيلان) پخوا چيرې ۇ او اوس چيرې دئ؟

ولي، څه کله پېښه سوې ده چې گيلان دي له يوه ځايه يا اوبجې ځخه و بل ځای يا اوبجې ته تللئ وي، دغه به زما نهايي هدف وي.

***

مولانا فخرالدين مبارکشاه د شنسباني سلطانانو او د غور د شاهانو نومونه، هغوی چې د نامه خاوندان ول، په نظم کښې ئې ياد کړي دي. د دوی سمه رشتيانۍ اوډنه ئې کړې ده.

د دوی د اوږدني سر ئې د ضحاک تازي و پادشاهۍ ته رسولئ دئ، د دغو شاهانو له زمانې څخه تر لومړني ضحاک تازي پورې پلار په پلار ورپسې یاد کړي دي، دغه د عاین چې منهاج سراج دئ، او هم د دغه کتاب لیکوال دئ چې د جها ن د خداوندي ملکې د زمانې زبیده او د زمان د جلال الدین والدنیا او په عالمونو کښې د ملکاتو سپوږمۍ د بختور سلطان غیاث الدنیا والدین ابوالفتح محمدقسیم سام امیر المؤمنین د ۶۰۲ په میاشتو کښې د دهٔ د ستر تخت و مخې ته یې یادوهٔ نه سوې ده. هغې څواني د جهان ملکې و دغه خوارهٔ کوټې ته په خپل بادشاهانه کور کښې ولرم، زما کوچینیان شپه او ورځ د دې په حرم کښې ول. او د دې تر مبارک نظر لاندې ئې روزنه وموندله. د هغې شاه زۍ (شاهلا) له پاره ډېرې ستاینې سته. اول دا چې په بنیادې بکارت کښې ئې له دارفنا څخه و دار بقا ته انتقال وکړ. دوهم دا چې دا لهي کلام حافظه وه. درېیم دا چې د شهادت خبرونه ئې ټول په یاد ول، څلرم دا چې په کال کښې ئې یوه پلا ولاړه (قیام) کوله، او ټول قرآن ئې په دوو رکعتو لمانځه کښې ختم کاوهٔ، او پنځم دا چې پلار یې سلطان غیاث الدین محمد سام د رحمت له حق سره یو ځای سو، اووهٔ کاله ئې په ورځ کښې د نمر روښنایي مخ نه ولیدئ. په دغه زمانه کښې دا د مصلې پرمخ ناسته او اعتکاف کوونکې منزوي وه، د خدای رحم دې پر دې وي.

د بیان په نتیجه کښې فخرالدین مبارک شاه دغه نسب نامه د سلطان علاء الدین حسین جهانسوز په نامه کښلې ده. له لویه سره ئې دغه بیان د زمانې د زبیدې او د اعصارو له خدیجې څخه او د هغې جلالي شهو له خولې څخه اورېدلئ دئ. څنگه چې د کتاب او تاریخ څه برخه په نظم سره کښلې ده. خو هغه د خوی تغیر چې په فخرالدین مبارکشاه کښې ښکاره سو، دغه نظم ئې نیمگړئ پرېښاوهٔ، څو چې د مملکت اورنگ د سلطان غیاث الدین محمد سام په بریا او شکوه سره ښایست پیداکړ، دغه تاریخ ئې په مبارکو القابو سره ښکلئ سو، او و پای ته ورسېدئ، دی داسي وایي: و دوی ته شنسبانیان وایي، دغه د پلارني نسب له اسیته څخه چې د ضحاک (ځهاک) د زامنو تر نقل وروسته په غور کې لوی سوئ دئ، څنگه چې لوینښت او غښتلتیا ته ورسېدل، نو د نامه خاوندان سول، ډېرگومان داسي دئ، چې د خلاف په زمانه کښې امیرالمؤمنین علي (رض) پر لاس باندې ایمان راوړئ، له دهٔ څخه وعده او لوا وغوښتله، هرڅوک چې به له دغې کورنۍ څخه پر اورنگ کښېناستئ، هغه د علي عهد او لوا به ئې ورکړه، د امامانو او د مصطفی د اهل بیتو محبت د دوی په اعتقاد کښې ټینگ او واضح وو. علي درې کاله خلیفه ؤ. نه دی نه ئې بل څوک و دې خوا ته راغلئ دئ، پښښه لا بله ده. (پ)

د دوی لومړنۍ یادوهٔنه، د دوی نسب او د دوی نیکونه تر ضحاک پورې چې په تازي سره مشهور دي،رسېږي.

د ضحاک یادوهٔنه د لومړنیو شاهانو په پوړ (طبقات) کښې سوې ده، د دهٔ د شاهۍ مدت زر کاله او یوه نیمه ورځ وو. تاریخ پوهان د دهٔ نسبیت او پلرونو اړوندتیا تر مهتر آدم پورې رسوي.

نو پوهان د دوی د نسبیت او عمر د اوږدوالي په اړوند ډېر اختلاف لري، هغه ټل چې دئ د مهتر نوح له زامنو څخه بولي، داسي وایي: ضحاک زوی د علوان، زوی د علاق، نمسی د غوض، کړوسی د آدم، کودی د نوح

(ع) ؤ. بيا ئې ويلي دي: د دې نوم بيور اسپ زوی د اروند اسپ نمسی د طوح، کړوسی د کابه، کوسی د نوح (ع) ؤ. ځينو نورو بيا ويلي دي، چي بيور اسپ زوی د رنبکاو، نمسی د تازيو، کړوسی د سد، کوسی د فراول، کودی د سيامک پور دئ د مشي هغه زوی د کيومرت، او نمسی د آدم (ع) ؤ.

تاريخ پوهانو داسي ويلي دي چي اروند اسپ د ضحاک پلار ؤ (دوه پيره ګرافه نور لا هم دغسي چټيات دي).

د مقدسي تاريخ ليکوال داسي راوړي دي: دې د ږغبدني نل لارې، چي له سرو زرو څخه جوړ سوئ ؤ، هغه نل اووه د ږغ سوري يا غارونه لرل، هر غار ئې د ځايي ځلرمي د اقليم په نامه ؤ.

د هر اقليم اوسېدونکو چي به و دې ته شورښت وکړ، د نل هغه غار چي د هغه اقليم په نامه به ؤ، په هغه به ئې جادو وکړ، او هغه به وسپړل سو، په هغه اقليم کښي به قحطي او وباء پيداسوه، څنګه چي ئې د بادشاهۍ زر کاله تېر سول، خدای تعالی خلګ د دې له ظلم او جبر څخه خلاص کړل (ژر ئې ژغورلي دي) او بادشاهي و افريدون ته ورسېدله، ضحاک ئې ونيوئ، او د عراق د وماوند په ځاء کښي ئې بندي کړ.

**د هند او سيند د بادشاه بسطام بيان:**

دغه بسطام د ضحاک له لاس څخه د هندوستان په مملکت کښي ځای لارې، دی د ضحاک له زامنو څخه ؤ، بسطام زوی د مشهار نمسی، د نريمان کړوسی، د افريدون کوسی، د مرماس کودی، د سبامند پوردی، د سپېدا سپ لا زوی، د ضحاک لا نمسی، د سهراب لا کوسی، د شيدا سپ لا کړوسی، د سيامک لا کودی، د مرساس لا پوردی او ضحاک ئې سرنی نيکه ؤ.

کله چي ضحاک ونيول سو، افريدون د هندوستان د نيولو له پاره لښکر ور واستاوې. بسطام د افريدون د لښکر سره د مقاومت توان نه لارې، نو د شغنان او باميان و غرونو ته ځني وتښتېدئ. افريدون بل لښکر پسي واستاوې، بسطام د شغنان او تخارستان څخه اوز پلاوي د غور و غرونو ته د ښکار له پاره تللئ ؤ، هغه ځای ئې د ډېرو چينو له اسيته څخه زر چيني نومولئ ؤ. دغه زمان بسطام د افريدون د لښکر کښي، د اسيته و غور ته تللئ ؤ، دې هوري د مرغزار (زار مرغ) د غرې په لمن کښي استوګنه وکړه.

د تاريخ پوهانو له خوا څخه په د غه ځای کښي دوه روايته دي:

يو روايت دغه دئ چي وکښل سو، دوهم روايت د منتخب ناصري څخه دئ. د غزنين له لويانو څخه يوې د سلطان معزالدين غازي په دوران کښي مضجعه ورکړې ده.

داسي روايت کوي چي څنګه افريدون پر ضحاک باندي بری وموند، او مملکتونه ئې ونيول، د دې دوه ورونه او زامن پر نهاوند باندي چاپېر سول، مشر ورور ئې سور نومېدئ، هوري امير سورې خو کشر ورور ئې چي سام نومي ؤ، سپاه سالار سو، امير سود لور لرله، او سپاه سالار سام زوی لارې، دغه دوه اکازيان ترله او تربور په کوچينيوالي کښي لا سره کوزده کړل سوي ول، دوی يو پر بل زړې بايللئ ؤ. سپاه سالار سام مړ سو، د دې زوی (نبک) زړې ور او جنګيالئ رسېدلئ ؤ، څنګه چي په هغه زمانه کښي ئې په مېراني او توريالیتوب کښي سيال نه لارې، د پلار تر مړني وروسته ئې بد وردان ځرګند سول، دی ئې د امير (سور) و مخي ته بدنام کړ، د اکا زړې

له دې څخه تور سو، داسي اتکل ئې وکړ چي
خپله لور د شاؤخوا اطرافو و يوې ملک (شاه) ته
ورکي، څنگه چي هغه نجلۍ ونغوړېده د اکا
زوی ئې وپوهاوه، په شپه کښې ورغلئ او د کلا
دو ور ئې پرانيست، لس آسان ئې خوښ کړل،
د امير سور ورور هغه نجلۍ او خواخوږي ئې پر
سپارې کړل.

څونده چي ښائېدله هغوندي پيسي ئې
ور واخيستې او وخوځېدل، په ډېري تلوارۍ
سره ئې ځانونه د غور و غرونو ته ورسول، دوی
هورې ځايان سول، وئې ويل چي د دوی څخه
مراندېش. د هغه ځای نوم مندېش
وگرځېدئ، د دوی کار هورې سم سو.

په لومړني روايت سره کله چي امير بسطام او
خواخوږي ئې په هغه ځای کښې ستانه سول،
و افريدون ته ئې خبر ور وړ، دې وغوښتل چي د
دريمي پلا له پاره د دوی د اشلې- اشلې کولو
له پاره لښکر وگوماري او دی ونيسي.

د افريدون زامنو، تور او سلم، خپل ورور ايرج،
چي د ايران پر تخت ناست ؤ، په غدارۍ سره
ئې وواژه، و افريدون بادشاه ته له دغه اسيته
څخه کاهښت او تفرقه ور ښکاره سول، څکه
ئې نو د بسطام و غچ اخيستنې ته لاس رسی نه
لاره. څنگه چي بسطام موقع وموندله، د غور و
ورا توالو او د هغه و شاؤخوا ته ئې مخ ور واړاوه،
د بادشاه فريدون حضور ته ئې خپل باوري
کسان (معتمدان) ور واستول، د روغي-
جوړي غوښتنه ئې وکړه، افريدون هغه ومنل.
څنگه چي بسطام امان وموند، د عرب قبايلو
تايقانو او خيلونو چي د ضحاک اړوند ول، له
اطرافو څخه ئې د غور و غرونو ته مخه کړه،
چي هورې واوسېدل. د هغو قبايلو شمېر ډېر
سو. څنگه چي خدای تعالی (ج) غوښتي ول،
له هغه اصله څخه متدين پادشاهان او برياليان
شاهان پيدا سول، دوی پر هغو قبايلو باندي
برکت کښېښاوه. څو د اسلام تر زمانې پوري
ئې دېرښت وموند. د هغه کان له جواهراتو
څخه د دوی په دولتي انتظام کښي وېښيل
سول. دوی زرونه جوړښته محرابونه او
منبرونه د ترمخنيو بتکړو پر ځای باندي جوړ
کړل.

د اسلام وينا وي او ړغاوی د هندوستان
تر وروستينو ښارونو پوري چي د چين له رادې
سره نژدې دئ، ښکاره سو.

و دغو پادشاهانو ته خدمت گاران ور
ورسېدل. هر يوه ئې د جهان په اوږدې او پسارې
کښي عدالت خپور کړ. د احسان او ښندنې
مانۍ ئې وداني کړې. موږ تر نن ورځي پوري د
هغي پادشاهۍ وارث او د هغه مملکت پر چارو
واکمن سلطان بختيار ناصر د دنيا او دين د
برياوو خاوند سلطان محمود دئ، (قسيم امير
المؤمنين) همېشنۍ دي وي د دې هيواد او
پادشاهي.

د شنسباني کهول پادشاهان ئې څلور
ډلي کړي دي. لومړنۍ ډله ئې چي يادوونه ئې
کېږي. شاهي ښار ئې فيروز کوه ؤ. دوهمه ډله
د باميان شاهان ول. دريمه ډله د غزني
پادشاهان ول. د سلطان محمد سام معزالدين
غازي ؤ. تر دې وروسته خاص بندگان پر تخت
باندي کښېناستل- څلرمه ډله ئې د
هندوستان پادشاهان ول. دغه مملکت او
دولت ئې و دوی ته په ميراث ور ورسېدل. له
شنسباني کورنۍ څخه د هغه دولت پر اورنگ
باندي کښېناستل.

**له دوی څخه لومړنی امير فولاد شنسباني ؤ:**

امير فولاد غوري د ملک شنسب د
خرنک (زوی) له زامنو څخه ؤ.

دغو د غرونو اطراف د دوی په تصرف
کښي ول. دې د خپلو پلرونو نوم ور ژوندی کړ.

ځنگه چي عباسيه احصار خاوند ابو مسلم مروزي پاڅون وکړ او د امويانو اميران ئې د خراسان له هيوادونو څخه وايستل.

امير فولاد د غور لښکرونه د ابو مسلم مروزي ومرستي ته ور وستل.

دء د عباس د کورنۍ او د ښې د کهول له پاره ئې ډېري پياوړتياوي وکړې، داوړدې زمانې له پاره منډېش او د غور د درو فرمان روايي يا حکومت د دء په لاس کښي ؤ. دی چي مړ سو، د غور امارت يې ورېرونو ته ورپاته سو. تر دغه وروسته ئې احوال څرگند سوئ نه دئ.

**دوهم امير بنجي نهاران شنسباني:**

دی لوی امير ؤ او په غور کښي ئې نوم خپور ؤ. د غور له لويو شاهانو څخه ؤ، د دء له زامنو له کور نيو څخه ول. لکه ځنگه چي کښل سوي وي، همدغسي د دوی نسبيت موندل سوئ دئ. امير بنجي د نهاران زوی، د درميسي نمسی، د وزن کړوسی، د دهين کوسی، د بهرام کودی او د حجش زوی، حسن زوی د ابراهيم نمسی او د معدل کړوسی او د باسر کوسی، د سداد کودی او د ضحاک پوردی ؤ، امير بنجي ډېر ښايسته او د ښو اخلاقو خاوند ؤ، په ښو صفتونو سره ستايلئ او په خوښاندو آثارو سره موصوف ؤ، کله چي د ال عباس دولت ټينگ سو او د خپلو نيکونو هيوادونه ئې ونيول، د بن عباس د خلفاوو په خدمت کښي ودرېدئ، او لومړنی سړی چي له دغه کهول څخه د خليفه و دربار ته ورغلئ او د دء ژمنه ئې واخيسته، هغه امير بنجي نهاران ؤ.

د دء د تگ عامل د امير المؤمنين هارون رشيد و دربار ته دا ؤ چي په غور کښي يوه قبيله وه چي دوی ئې شيشانيان بلل او دوی د دې دعوه کوله چي د دوی لومړنی پلار ايمان منلئ دئ، هغه زمان شنسبانيانو و محمد ته د غور په ژبه حمد ويل، ځنگه چي دء ايمان ومانه، نو ئې و دوی ته حمدي ويل، د محمدي په مفهوم سره د امير بنجي په زمانه کښي د دغو شيشانيانو په قبيله کښي داسي څوک ؤ چي د ده نوم شيث د بهرام زوی ؤ، د غوريانو په ژبه و شيث ته شيش وايي، له همدغه اسيته څخه و دوی ته شيشانيان ويل کېږي، له امير شيش سره د غور پر امارت باندي له امير بنجي سره مخالفت پيداسو، د غور د خلگو په منځ کښي شخړه پيدا سوه، له دواړو خواوو څخه ټولو اتفاق وکړ، چي دوی دواړه امير بنجي او شيث دي د خلافت دربار ته ورسي، هر څوک چي له دوی دوو څخه له خليفه څخه ژمنه او جنډې دروړي، هغه دي د دوی امير وي، دوی دواړو د سفر له پاره تياري ونيوله، او د خلافت و ښار ته ولاړل، د خلافت تخت د اميرالمؤمنين هارون الرشيد په جمال سره ښکلئ ؤ.

راوي داسي وايي: په هغه هيواد کښي يو مينجاری ؤ، دی يهودي او د مهتر موسی (ع) په دين ؤ، د هغه مينجاري له امير بنجي سره مينه وه، دء ډېر سفرونه کړي وه او د سود سودا مينجاري توب ئې کاوء، مخ ئې د خلافت د ښار و خواته واړاوء، دء مبارک هيوادونه ليدلي ول، د شاهانو او سلطانانو د دربار د آدابو پېژندوی ؤ، دغه مينجاري له امير بنجي سره ملگرئ سو، د امير بنجي مقصد او مطلب ئې و ځان ته معلوم کړل، و امير بنجي ته ئې وويل: که زء و تاته د ادابو ښوونه وکم، حرکات او سکنات (ناسته ولاړه) در زده کم، د خلافت د دربار مراتب، د سلطانانو د حضور وجايب درته ووايم، ځو له دغه اسيته څخه د غور امارت او ايالت وتاته په لاس درکړل سي، ته به لا د ما سره ژمنه وکې چي د غور په ټول هيواد کښي، هر چيري چي به زء غواړم، هورې به د بني اسرائيلو ټولني او د مهتر موسی (ع) و تابعانو

ته ځای ورکې، څو هورې استوګن سوي وي، دوی به ستا په پناه کښې وي، ستا د زامنو شاهانو تر سیوري او حمایت لاندي ئې آرام کړئ وي، امیر بنجي بهاران له هغه اسرائیلي مینجاري سره ژمنه وکړه، چي که ته و ماته د شاهانه ادابو، د خلافت د دربار د خدمت د آدابو ښوونه وکې، ستا ټولي غوښتني به په وفادارۍ سره تر در سره کم، ټولي اسانتیاوي به ستا و مخي ته کښېږدم، څنګه چي د دواړو خواوو ترمنځ ژمنه ټینګه ډېرینه سوه.

هغه بني اسرائیلي مینجاري د شاهانه ادابو او د خلافت د دربار خدمت او د سلطانانو د درناوي شرایط د خلافت د دربار ناستي– ولاړي، ښوونه او روزنه ئې ورکړه، شاهانه خولۍ ئې ور پر سرکړه او شاهي یا درباري چوخه ئې په واغوسته، موزې ئې ور په پښو کړې، آس ئې ور زین کړ، د آس سپارلي او د وسلې او درستي ترلو ښوونه ئې ورته وکړه، څو د بهرام و زوی شیش، ته دغه لاري– چاري ورمعلومي نه وې، څنګه چي د خلافت و ښار ته ورسېدل، د بهرام زوی شیش، په ساده کالیو کښې و هغې مانۍ ته ورغلئ چي ورښوول سوې وه، ورغلئ، خو امیر بنجي نهاران په امیرانه او مهترانه خاوندتیا او ادابو سره د خلیفه و حضور ته ورغلئ، تر ادابو وروسته د دربار په خدمت کښې ودرېدئ، د فرصت په وخت کښې چي د دواړو مقصد یو ؤ. د خدمت په شرایطو کښې خپله غوښتنه ور وړاندي کړله، دوی د خپلي شخړي حالت وزیر ته ور وړاندي کړ، او هم ئې د ښارو استاد ته وwایه چي مقصود او مطلوب ئې ټول ورمخته کړل، امیرالمؤمنین هارون الرشید، تر هغه وروسته چي د دوی بیان ئې مطالعه کړئ وو، او خپل نظر ئې د دوی په اړوند څرګند کړ.

د امیر بنجي بهاران په حق کښې ئې وفرمایل، څنګه چي امیر بنجي نهاران له ښایست څخه برخمن ؤ او بشپړ نصاب ئې لاره، د طبعیت او تازګۍ په زینت سره پسوللئ ؤ، د امیرالمؤمنین په مبارکي وینا سره وویل سول، دغه قسیم، یعني دغه بنجي ښخي، او د امارت په ادابو پوه ؤ، فرمان ورکړئ، په وسایلو سنبال او د ښایست او صفا سر پرې به جمع کړي، د غور امارت باید و ده ته ورکړه سي، د غور پهلوانان یا لښکر باید و شیش د بهرام و زوی ته ورکړل سي، دوی د خلافت د ښار په تشریفاتو سره د اسلام په مبارک دین مشرف سول، دوی دواړه تر دغه وروسته د غور و خواته ولاړل، په غور کښې ئې د خلیفه و فرمان ته مراجعه وکړه.

له هغې زمانې څخه د شنسباني سلطانانو لقب د امیرالمؤمنین هارون الرشید له مبارکي ژبې څخه امیرالمؤمنین سو.

څنګه چي دوی دواړه و غور ته ورسېدل، د شنسبانیانو امارت او د شیشانیانو پهلواني (لښکروالي) تر همدغي زمانې پوري همدغسي وه، سلطانان شنسبانیان ول، خو پهلوانان لکه مویدالدین ئې فتح کرماخ او ابو العباس شیش او سلېمان شیش ټول شیشانیان ول.

**درېیم امیر سوري د محمد زوی:**

د امیر بنجي له زمانې څخه بیا تر دغه زمانې پوري د غور د امارت حال ونه موندل سو، په هغو تواریخو کښې چي ئې حال مفصل بیان سوئ دئ، لکه اتساق (الشان) د دغه طبقات لیکوال د ډهلي په ښار کښې ؤ چي د مغولو کفارو په فتني سره په ښارونو او شاؤخوا کښې تفرقه او اختلاف پیداسول، د دغو حالاتو د بیانولو تاریخ چي د غور په ښارونو

کښې پېښ ؤ، په لاس نه راغلئ، د ضرورت هغه څه چي په تاریخ ناصري کښې ول او په تاریخ ابن هیصم نابې، او هم ځیني اوربدني چي د غور له مشرانو څخه موندل سوي وې، وکښل سولې.

داسي ئې راوړي دي: چي امیر سوري ستر بادشاه ؤ، دء د غور ډېر هیوادونه ونیول، څنګه چي د غور ځیني ښارونه، لکه لوړ او کښته والشتان چي د اسلام په دین سره مشرف نه ول. نو په هغه زمانه کښې ئې له دوی سره دښمني لرله، (د دوی ترمنځ دښمني وه).

څنګه چي صفاریان د نیمروز له ښارونو څخه د بست او داور وخواته ولاړل، یعقوب لیث د رخج له ښارونو څخه د تګین آباد امیر لک لک ئې مات کړ، د غوریانو قبایلو د سیند په سرحداتو کښې ئې ځانونه کلابند کړل او سلامت پاته سول.

خو د دوی په منځ کښې همېشه دښمني وه، مسلمانانو له مشرکانو د یو کوشک او بل کوشک د (یوې کلا له بلې کلا) سره جنګونه کول، هر کله به د دوی په منځ کښې بدي وې.

د کلاوو له اسیته څخه چي د غور په غرونو کښې وې، هیڅ دښمن پر دوی باندي بري موندلای نه سوای، د ټولو مندېشان سرغنه شنسباني امیر سوري ؤ، په غور کښې ئې پنځه غرنۍ لویې کلاوې وې.

د غور اوسېدونکي یووالی لري، دغه د جهان د غرونو سرښارونه دي، چي له دغو څخه د مندېش مرغ زار دئ، دا سي ئې ویلي دي، چي د شنسبانیانو شاهي ښار او ماڼۍ د هغه غره په لمن کښې ودانه کړ، او وایي: چي زاړی زال د روستم پلار ؤ او سېمرغ په هغه غره کښې لوی سوئ دئ، چیري چي دی ؤ.

ځیني د هغه غرء د لمني اوسېدونکي داسي وايي: د پنځمي او شپږمي پېړیو ترمنځ کلونو کښې له هغه غرء څخه د مړیني او ساندو ږغ واورېدء سو چي زاړی زال مړ سو، له دنیا څخه ولاړئ، دوهم غر (سورغر) نومېږي، دغه هم د مندېش په ولایت کښې دئ، او د تجیز په حدودو کښې دئ. دریم غر په اشک کښې دئ چي د تمران له ښاره سره دئ، د دغه غرء لویوالئ او جګوالئ ډېر دئ، چي د غور په ټولو ښارونو کښې داسي دئ.

د تمران ښار د هغه غرء په ښاخونو او اطرافو کښې دئ، څلرم د (ورني) غر دئ چي د داور والیشت او د کجوران ماڼۍ د هغه غرء په څانګو او اطرافو کښې ده. پنځم د روئین غر دئ چي خورا کروړ او ډېر لوړ دئ. ویلي ئې دي چي پنځم د خیسارفج دئ، چي طول او عرض او جګوالئ ئې د خیال تر حد او د فهم تر درک او ذهن دباندي دئ، د پنځه سوه او اتیا په میاشتو کښې ئې د هغه غرء پر سر باندي د آبنوس د وني له تنې څخه جوړه یوه ماڼۍ پیداکړه چي دروندوالئ ئې تر دوه زره منه ډېر ؤ، چي کیفیت، وضعیت، او ارونتیا ئې هیڅا نه وموندلای سوای.

**څلرم – ملک محمد سوري:**

د ابوالحسن هیصم بن محمد تابي تاریخ داسي کښلي دي:

څنګه چي د خراسان او زاولیستان امارت له سامانیانو او صفاریانو [سپاریانو] څخه و امیر سبکتګین ته ورسېدئ او دء اوز پلاوي له بست څخه د غور د غرونو و خواته لښکر کښې وکړه، ډېر جنګونه ئې وکړل، کله چي شاهانه اورنګ د سبکتګین و زوی محمود ته ورسېدئ. د غوریانو امارت و امیر محمد سوري ته رسېدلئ ؤ، دء د غور نور هیوادونه

هم ونیول، تر څه وخته ئې د سلطان محمود اطاعت کاوء، او کله به ئې هم سرکښي وکړه او د سرپېچي نخښي به ئې وښوولې، هغه څه چي د اسلام جحه پر مقرره وه، سرغړاوئ به ئې څني وکړ، د ټینګو کلاوو په باور سره په لوړ شان او شوکت سره، او په ډېرو وعدو سره ئې له غزني دربار سره مخالفت وکړ.

د سلطان محمود زړه به هر کله له دغي خوا څخه کاهښتمن ؤ.

د دء د قوت، جدیت، شوکت، جلال، ټینګښت، او د لوړوالي له اسیته څخه اندېښمن ؤ، څو له دغه اسیته څخه له لویه لښکره سره و غور ته ولاړئ.

محمد په آهنګران کښي کلابند سو، ډېر کله ئې د هغې کلا کلابندي وساتله، ډېر جنګونه ئې وکړل، وروسته له ډېري مودې څخه د روغي او صلحي په نعمت د هغې کلا څخه ور ووت، او د سلطان محمود له خدمت سره ملګرئ سو.

سلطان محمود دی (محمد) او د دء کشر زوی چي شیش نومېدئ، (ونیول) او غزني ته ئې بېول.

خو له دې اسیته څخه چي پر امیر محمد سوري باندي خپل کشر زوی (شیش) ډېر ګران ؤ، څنګه چي د ګیلان و نژدېدو ته ورسېدئ، نو امیر محمد سوري له ژونده محروم سو.

ځیني بیا داسي وایي: څنګه چي دی امیر سو، او خورا په زړه ډک مېړنئ سړئ ؤ، نو د بند او سپکاوي توان ئې نه لارء، نو د دء په ګوته یوه غمینه ګوتمۍ وه چي د هغې تر غمي لاندي ئې زهر پټ کړي وه، له هغوی څخه ئې ونغړل او له دنیا څخه ئې سترګي پټي کړې (ځان وژنه یې وکړه). سلطان محمود د دء زوی، (شیش) بیرته و غور ته واستاوء، د غور امارت ئې د دء و مشر زوی ته ورکړ، د دء زوی د علي پلار، د محمد زوی، او د سوري نمسی ؤ.

**پنځم – ملک ابو علي د محمد سوري زوی:**

ابو علي د ښه خوی او غوره اخلاقو خاوند ؤ، دء ښه عقیده لرله، کله چي ئې پلار د غور او مندېش د غرونو امارت لارء، د ټولو خلګو سترګي و دء ته وې، کله چي به ئې پلار له امیر سبکتګین او سلطان محمود سره دښمني کوله، امیر ابوعلي به هر کله د سلطان په خدمت کښي اخلاص او راستي ښکاره کوله.

داسي لیکونه به ئې ورته وکښل چي په هغو کښي به ئې مینه او فرمان مننه ښووله، دغه لیکونه به ئې و غزنین ته استول.

څرنګه چي د پلار سرغړاوئ ئې د اعتدال تر حده تېر سو، نو سلطان له غزني څخه لښکر کښي پر وکړه، وروسته تر ډېرو کوښښونو امیر محمد سوري ئې په لاس کښېوتئ، دی ئې له خانه سره و غزني ته بوتلئ، امیر ابوعلي ته ئې د غور امارت ورکړ، څنګه چي ابوعلي په غور کښي کښېناوء سو، له خلګو سره ئې ښېګني کولې، د ښېګني ودانۍ ئې جوړي کړې، د غور په ښارونو کښي ئې جامع مسجدونه او مدرسې ئې وداني کړې، ډېر اوقاف ئې ورته وټاکل، د علماوو او امامانو عزت ئې کاوء، زاهدان ئې نازول، او د اخترونو لوازم او حالات ئې د ځان بلل. د غور د ممالکو خلګو د دء په زمانه کښي په آرامۍ او سووانۍ سره ژوند کاوء.

ورور ئې شیش د محمد زوی د دء تر سیوري او ساتني لاندي ژوند کاوء، څنګه چي د دء د امارت څه زمانه تېره سوې وه، او هم د غزنین مملکت د محمود څخه و مسعود ته ورسېدئ، دغه زمان د امیر شیش زوی عباس

د ډېر قوت او شوکت خاوند ؤ، ده پاڅون وکړ، او خپل اکا امیر ابوعلي ئې ونیوئ، د غور هیوادونه ئې د ځان کړل.

شپږم – ملک (امیر) عباس د شیش زوی
(د محمد نمسی، د سوري کروسی)

امیر عباس زړه‌ور مېړه ؤ، دی بې باک، مشهور او بې رحم ؤ، څنګه چې په ځواني کښې ئې شهامت او نهایي قوت ولاره، ده د ځوانانو او سرغاړو څخه یو ټل جوړ کړ، له دوی سره ئې ژمنه وکړه، او د سرغاړي توب په پاڅون کښې ئې د ځان ملګري کړل، دوی نابېره پاڅون وکړ، دوی امیر ابوعلي، چې تره (اکا) او د غور ملک (شاه) ؤ، ونیوئ، او بندي ئې کړ، د ده مالونه، غولکان او خزانې ئې ځني واخیستلې، دوی د غور هیوادونه هم ځني ونیول، دی خورا ډېر اخیستونکئ، چال چلاند، او ظالم ؤ، په زهیرولو او استبداد کښې داسي ؤ لکه دغه جباریت چې ئې په خټه کښې اخښلئ وي، ده له بې شمېره خلګو سره نادودي پیل کړې، د دوی تر مالونو او ملکیتونو ئې لاس وکینښ، څنګه چې مشران او کشران چې د ده له خوا څخه اړ ایستل سوي، او اسکېرل سوي ول، د ده په زمانه کښې هیڅ حیوان لکه آس، اوښ، غوایي او پسه بچوړئ نه وزېږاوه، له اسمان څخه باران نه واورېدئ، او د یوه روایت له مخې څخه (هیڅوک انسان د زوزاتو خاوند نه سو) هیچا زوی نه وزېږاوه.

د ده د سخت ظلم په اړوند راوي داسي وایي: ده دوه خوروړي سپیان لرل، چې هغه به په غړوندي او اوسپنیز ځنځیر سره تړلي ول، پر یوه ئې د ابراهیم غزنوي نوم ایښئ ؤ، او بل ئې عباس غوري باله، دغه دواړه سپیان به ئې و ده ته ور وستل، له دوی څخه به ئې ځنځیرونه ایسته کړل، دوی دواړه به ئې سره وجنګول، کله چې به د ده هم نامه سپی غښتلئ سو، په هغه ورځ به ئې ښادي کوله، ډېر بخښښونه به ئې ورکول، که به کله هغه بل سپی پر غښتلئ سو، په هغه ورځ به دی خښمن او تریو ؤ تریخ ؤ. خلګ به ئې زهیرول، له سترو کسانو سره به د دې مجال نه وو چې له ده سره ږغېدلي وي.

سره له دغه ټول ظلم او جبره ئې د نجوم په علم کښې بشپړه ونډه لرله، په هغه خوا کښې ئې ډېره خواري کښلې وه. د دغه علم په زدکړي کښې ئې، ډېر جد و جهد کړئ ؤ، بشپړ کار ئې ځني اخیستئ.

د مندېش په ولایت کښې، او د سنګه په اوبجه کښې هغه کلا چې بسطام ودانه کړې وه، د هغې ودانۍ د ترمیم امر ئې ورکړ او د هغې کلا د رغښت له پاره ئې کامل استادان له شاؤخوا څخه ور وغوښتل، او د هغې کلا دېوالونه ئې د باري غوندي ودان کړل، د غره د تېغې و خوا ته ئې د مرغ زار غره خوا ته ور وغزوله (ور اوږده کړه).

د هغه غره په لمن کښې ئې پر یوې غونډۍ باندي مانۍ ودانه کړه، چې دوولس برجان ئې لرل، په هر برج کښې ئې دېرش کړکیاني (کلکین) کښېښوولې. شپږ برجونه ئې د شمال او ختیځي خواته ول، او شپږ برجونه ئې وسهېلي او لوېدیځي خواته ول، په هر برج کښې ئې د فلکي برج صورت وکینښ. د دغه وضعیت ئې ور داسي کړ چې نمر به هره ورځ له یوې کړکۍ څخه د هغې درجې په نسبت چې د هغه اخیستنه به وه، لکه څنګه چې و ده ته به څرګنده وه، وګرځېدئ، چې په دغه ورځ نمر پر کومه درجه، او په کوم برج کښې دئ، دغه وضعیت د امیر عباس پر استادي او خلافت باندي دلالت کاوه. د نجوم

په علم کښې په دغه زمانه کښې د غور مانۍ ودانۍ سوې او نور ئې هم ډېرښت پسې وموند. خو دا چې خلگ د دء له خورا ظلم او ستم څخه بېزاره سوي ول، او مخ ئې څنې اړولئ ؤ، نو د غزنین د ژمنې او د سلطان د سلطنت تخت و ابراهیم ته رسېدلئ ؤ.

د غټانو ټولنې او اشرافو د مرستې له پاره و غزنین ته لیکونه واستول، ځکه نو د غزنین څخه د سلطان ابراهیم غوښتنه له ډېر لښکره سره اوړدوالئ وموند، کله چې و غور ته ورسېدئ، نو غونډ لښکر د سلطان په خدمت کښې ودرېدئ، چې امیر عباس ئې د سلطان په لاس ورکړ، سلطان ابراهیم د مسعود زوی امیر عباس بندي کړ، او غزنین ته ئې بوتئ، د غور هیوادونه ئې د دء و زوی امیرمحمد ته ورکړل.

**اووم امیر محمد د عباس زوی:**

څنگه چې ابراهیم د مسعود زوی امیر عباس ونیوئ او غزنین ته ئې واستاوء، د غور هیوادونه ئې د غور د لویانو او اشرافو له غوښتنې سره سم و امیر محمد عباس ته ورکړل، دی خورا ډېر د خلگو په ښېگڼو او هم ئې خورا ډېر د طبیعي لطافت لارء، دی خورا عادل، او د ښو اخلاقو خاوند ؤ، دی منصف، د علم ؤ عالم پر خوا عادل او د خوارانو نازوونکئ ؤ، هر څه ظلم او بدوردي او دښمني چې ئې پلار لرله او د ده د هرناوړه خوی پر ځای ئې زر خوښاند صفتونه لرله، د پاکۍ معنی ئې په طبعیت کښې اغښلې وه.

څنگه چې د غور هیوادونه د دء امیر محمد په نامه سول، د غور ټول لویان او اشراف و دء ته لاس پر نامه سول، د ورکړې او خیرات په مراسمو کښې ئې د هڅې وکړې او هغوی ئې بیرته باب کړې، ترڅو چې ئې له توانه کېدل، په خوښۍ او راستۍ سره ئې د غزنین د سلطانانو خدمت کاوء، ژمنه یا منلې مالونه ئې ور واستول، د دء په زمانه کښې رواحت او آرامۍ دو ورونه (لوی ورونه) د خلگو پر مخ ور پرانیستل سول، ټولو په سووانۍ او ښېغمۍ کښې ژوند کاوء، نعمتونه او خواړه پرېمانه سول چې د هیواد تر پایه هم دغسې ول، په غونډ مملکت کښې خواص او عوام په آرامې کښې ول، څو چې دی مړ سو.

**اتم ملک قطب الدین الحسن د محمد زوی د عباس نمسی:**

ملک قطب الدین حسن د غور د لویو شاهانو نیکه ؤ، دی عادل او پر وعده ولاړ ؤ، دی ښایسته د عدالت، پېرزوینې او د شفقت آثار ئې د غور د ښارونو پر اوسېدونکو باندې څرگندول، هرې ټولنې چې به سرکښې وکړه، د هغې په خښمن ترټلو سره به بوخت سو، د غدارانو ترټنه ئې لازمې بلله، څنگه چې د غور په هیوادونو کښې د دوی اصل ؤ بنیاد له عربو قبایلو څخه ؤ، خو زدکړه او لویښت ئې د غور د غرونو په لمنو کښې سوئ ؤ، نو د خویونو ترینگلتیا، خواپوټکې، بریالیتوب، پیاوړتیا، پاڅون او سرکښې ئې د غوریانو قبایلو په طبعیت کښې اخښلې ول، همېشه به د دوو قبیلو په منځ کښې دښمنانه وژنې او ژوبلونې وې. هر کال به د غور له خواوو څخه په یوه خوا کښې جنگونه لیدل کېدل، د قانوني واجبو اموالو (مالیې) له ورکړې څخه به ئې ممانعت کاوء، دغه هم تر دغې زمانې پورې داسې ؤ چې د سلطانانو د زمانې د دولت پای ؤ، د دغو طایفو حال همدغسې لیده کېدئ. یو زمان له زمانو څخه، د ملک قطب الدین په دوران کښې چې دی د نورو سلطانانو نیکه ؤ، یو ټولون چې د وجیرستان ولایت د تگاب

اوسېدونکي ول، سرکښي ئې وکړه، ملک قطب الدین د سالارانو او د غور له امیرانو سره و څنګ ته د هغې مانۍ (کوشک) او ټولني و کلا ته ورغلئ، دوی ئې و اطاعت او تسلیمۍ ته ور وبلل، دوی تسلیم نه سول، نو ئې ترمنځ جنګ وموښتئ، نابوبره له آسماني قضاء سره سم له عصات څخه یو غشی ورغلئ، چي د تقدیر له لېندۍ څه ور ویشتل سوئ ؤ، د ملک قطب الدین په سترګه کښي ښخ سو، دی هم له دغه زخمه څخه چي لا د جنګ په میدان کښې ؤ، هوري ئې ساه وختله.

څنګه چي سالارانو او لښکریانو هغه ژوبلېدنه ولیدله، نو ئې هغه آن سرښندنه او بوږر کتیا وکړه، څنګه چي خښمېدلي ول، نو هغه کوشک او کلا ونیول، د هغیو ټول عصات ئې ووژل، هغه ځایونه ئې ویران کړل، د غور د سلطانانو د زماني تر پایه پوري، او د شنسبانیانو د دولت تر نړېدني پوري هیڅوک د هغې مانۍ (کوشک) او کلا په ودانولو بوخت نه سو، خو امیر خرنک، چي په هغې شاؤخوا کښي نرۍ او به وي، او د هغې شاؤخوا اوسېدونکي و دء ته لېزیمه ول. څنګه چي ملک قطب الدین حسن ووژل سو، د دء زوی عزالدین حسین پر اورنګ کښېنوست.

## نهم د سلطانانو پلار ملک عزالدین الحسن د الحسن زوی:

د ملک عزالدین زامن اووء ول: ملک شهاب الدین محمد (خرنک) د (مادین) او غور ملک، ملک فخرالدین- مسعود، د بامیان او تخارستان امیر، سلطان علاءالدین حسین بادشاه د غور او غزنین او بامیان، سلطان سیف الدین سوري بادشاه د غور او غزنین، سلطان بهاءالدین سام د غور بادشاه، ملک الجال قطب الدین محمد د غور او فېروزکوه امیر، ملک شجاع الدین د خراسان او غور امیر.

ملک عزالدین حسین د ښېګڼې بادشاه، دی ښایسته او د ښې ژمني خاوند ؤ، دی په ټولو ښو صفاتو سره ستایلئ ؤ، دی د ښو خوښوکړو اخلاقو خاوند ؤ.

د غور هیوادونه او د غرونو ښارونه (بلاد جبالی) د دء د امارت په زمانه کښي آباد ول، د هغو سیمو خلګ یا اوسېدونکي ئې هوسا، د دء تر سیوري لاندي، په امن او حمایت کښي ول.

عالمان، زاهدان او نور عادي خلګ هر یو د دء له حاله څخه برخمن او د خپلو مقاصدو د حاصلولو وصال ئې لارء. خدای تعالی (ج) د دء د اعتقاد او ښه خوی له اسیته څخه و دءه ته اووء زامن ورکړي ول، د دوی سلطنتونه او مملکتونه په اوو اقلیمونو کښي وېشلي ول، له دوی څخه څلور زامن د سلطنت او جهانوالي پر اورنګ کښېناستل، له دوی څه نومیالیان زامن په نړۍ کښي شهریاران سول.

څنګه چي وروسته به وکښل سي، دغه عزالدین حسین له سنجري دولت او سلجوقي سلطنت سره ټینګ تړون او محبت لرل.

دوی هر کال د وسلو له خوا څخه لکه زغري، جوشن او خولونه، هغه دي ژمنجن (معهود) ول او شمېر ئې ټاکلئ ؤ، و سنجري دربار ته ئې وراستول. [او سلطان محمود او مسعود ته ئې هم د جڅې په توګه له آهنګران څخه ور استول].

په غور کښي خروړي سپیان سته، په غټوالي او زور کښي هر یو د زمري برابر دئ، له دغو سپیانو څخه ئې اوز سپیان چي ګران ارزښته غړوندي ئې ور اچولي ول، د سلطان و خدمت ته ئې ور واستول، و دء ته ډېر سوغاتونه او تشریفات ور ورسېدل، د غور او غزني له سلطان سره ئې هم د خوالو او میني له لاري څخه ور وسپارل.

د څه مدې له پاره د غور امارت د دء په لاس کښي ؤ، څو چي له ژوندانه څخه بې برخي سو، دء اووء زامن لرل، چي مشر ئې ملک فخر الدین مسعود ؤ، خو د دء یادوءنه په بلي خپل (طبقه) کښي وي. دغه به د بامیان د سلطانانو په اړوند وي، دغه طبقه به د دء پر بیان باندي کښلې وي. ۳۱۸- ۳۳۵ د لومړي ټوک مخونه.

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقیري

# د سقراط تلپاته نظریات

دوهم کتاب

اتم فصل

## سقراط خپل پخوانی انډیوال یوتیروس تشویقوي چې خپل پخواني عادتونه خوشي کړي او ځان په نورو ګټورو او باعزته کارونو باندي اخته کړي

یو بل وخت سقراط د خپل زاړه یار یوتیروس سره مخامخ سو. ډېر وخت تېر سوی وو چې سقراط هغه نه وو لیدلی. سقراط له یوتیروسه تپوس وکړ چې له کمه ځایه راغلی دئ؟ یوتیروس په جواب کي وویل: «دا اوس خو له بهره نه یم راستون سوی، مګر د دغه سمندر له ها غاړي څخه له یوه سفره راغلی یم. ما هلته خپل ټول جایداد بایللی دئ او بل پلو پلار مي هم ما ته په اتیکا کي هیڅ شی نه دي را پرې ایښي. زه مجبوره یم چې د خپل ژوند او ګوزران له پاره کم کار وکم، ځکه زما په ګومان دا به ډېره ښه وي چې کار وکړم نه دا چې د نورو د اوږو بار سم. بل پلو، حقیقت دا هم دئ چې زه نور قرض نه سم کولای، ځکه زه بل شی د اجارې او ګروی ورکولو له پاره نه لرم».

سقراط ترې وپوښتل: «ایا تر څه وخت پورې به ته د خپل ژوند او گوزران له پاره کار وکړای سې؟» هغه په جواب کي وویل: «اوف، ښایي ډېر لږ وخت.» سقراط ورته وویل: «کله چي ته بوډا سې، بیا به هم یو څه خرچې ته ضرورت لرې، مگر هله به ته د کار کولو نه یې». یوتیروس ورته وویل: «ته حقیقت وایې.» سقراط خپلو خبرو ته ادامه ورکړه: «نو بنا، ته اوس مجبوره یې چي یو داسي کاروبار ته لاس واچوې چي د سبا له پاره او د خپل زاړه عمر له پاره څه وسپموې. ته باید د یو داسي ثروتمن سړي سره د اقتصادي مشاور په حیث کار پیدا کړې چي هغه ستا د کار او خدمت په مقابل کي تا ته ښه مناسب معاش درکړي، البته ته به د یوه ناظر غوندي د هغه پر کارگرانو باندي نظارت کوې، ته به د هغه ثروت راغونډوې او ته به ټول هغه شیان خوندي کوې چي د ده وي.»

یوتیروس په جواب کي وویل: «زما له پاره دا ډېره گرانه ده چي مریيتوب ته ځان تسلیم کړم.» سقراط ورته وویل: «د جمهوریت ټول قاضیان او حاکمان او ټول هغه نور چي په دولتي چارو بوخت دي، هغوی مریيان نه دي. اما برعکس هغوی محترم او باعزته خلک دي». اریستارچوس په جواب کي وویل:

«زه فکر نه کوم چي زه به کله هم حکومتي ماموریت قبول کړم، ځکه زما دا نه خوښېږي چي زه د یو چا تر لاس لاندی کار وکړم، او یا د کارونو د خرابېدو پر وخت ملامت سم». سقراط ورته وویل:

«چیري به ته یو داسي کار پیدا کړې چي کاملاً مستقل او ستا خپل وي، او له هر راز الزامه خلاص وي؟ ځکه په ژوندانه کي دا ډېره گرانه ده چي داسي دقیق واوسو چي کله نا کله ناکام او یا خطا را څخه و نه سي. حتی که موږ هیڅکله هم سهوه او خطا نه سو، خو بیا به هم د بدو قاضیانو له بده قضاوته بچ نه سو. بل خوا، زما په خیال چي دا به یو عجیب او غریب باور وي، که چیري دا ومنل سي چي په هغه کار چي ته همدا اوس لگیا یې، ته په دې شغل کي داسي ماهر او استاد یې چي هیڅوک و نه کړای سي چي ستا په کار او تولید کي هیڅ شی خراب پیدا کي.

«څه چي ته باید تل وڅارې هغه دا چي تا ته په کار ده چي له هغو خلگو گوښه ځان وساتې چي تل غواړي په نورو کي پرته له کومه وجې قصور او کمی پیدا کړي.

په بل عبارت، ته باید هغو کارونو ته لاس ورواچوې چي ته ئې واقعاً د کولو توان لرې، او هغه کارونه رد کړې چي ته پوهېږې د کولو طاقت او مهارت ئې نه لرې او کله چي ته یو کار او ماموریت ته لاس واچوې، بیا نو دا اراده باید ولرې چي همدا ماموریت تر خپله وسه پورې په عالي شکل او کمال باندي اجرا کړې. په دې ترتیب به تا ته لږ ملامتي راجع وي، او د خپل فقر او نسبتمنۍ د رفع کولو له پاره به یوه لاره پیدا کړې، یو ارام ژوند به لرې، له خطر څخه به ساتلی یې، او د خپل زاړه عمر له پاره به په کافي اندازه ذخیره او اسباب ولرې».

نور بیا ...

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

## نوبل جایزه وړونکي ادیبان

# ګرهارټ هاوپټمان

(Gerhart Hauptmann)

(۱۵، نومبر ۱۸۶۲م-۶، جون ۱۹۴۶م)

د شلمي پېړۍ نامتو الماني ډرامه لیکوال ګرهارټ هاوپټمن ته په (۱۹۱۲م) کي نوبل ادبي جایزه ورکړه سوه. نوموړي د خپلي لیکوالۍ په لومړیو کلونو کي د نچرلیزم ادبي مکتب تر اغېز لاندي ځیني ډرامې وکښلې. دا ډرامې تر اوسه لا اکثره وختونه لوبول کېږي. د هغه له مشهورو ډرامو څخه یوه ډرامه د اوبدونکي (The Weavers) په نامه ده. دا ډرامه په (۱۸۹۳م) کي تمثیل سوه. نوموړې ډرامه د صنعتي انقلاب د مخانکیت په غبرګون کي د انسانانو د بنسټیزو ارزښتونو د پالني د اړتیا ږغ پورته کوي. همدا رنګه په (۱۸۸۴م) کي ئې د (Hannele) په نامه یوه بله ډرامه خپره سوه. دا ډرامه د حقیقت او خیالي ځواک تر منځ پر مناقشه راڅرخي.

ګرهارټ هاوپټمان د ختیځ المان په سلیسیا (دغه سیمه اوس د Szczawno Droj په نامه یادېږي) کي زېږېدلی دئ. د هغه پلار رابرټ هاوپټمان د یو هوټل مالک وو. نوموړي خپل زوی ګرهارټ هاوپټمان د بریسلا یو جمنازیوم ته ور ولېږی. جمنازیوم د هغه اکا په خپله مځکه کي جوړ کړی وو. په دې ځای کي نوموړي د خپلي شاوخواسیمي د بزګرانو د ژوند مشاهده وکړه. هاوپټمان له کوچنیوالي څخه له انځورګرۍ سره مینه درلوده، د دې ذوق د خړوبولو له پاره د بریسلا د هنرونو

اکاډیمۍ ته ولاړ او هلته ئې د مجسمې جوړوني په برخه کې زده کړې پیل کړې. په شل کلنی کې جینا (Jena) ته ولاړ او د هغه خای په پوهنتون کې ئې د ادبیاتو او فلسفې مطالعه پیل کړه.

له (۱۸۳۳م) څخه تر (۱۸۳۴م) پورې هغه په روم کې هنر مطالعه کړ او هلته ئې د پرومیتهیس (Prometheus) اسطورې پر بنسټ یو رومانتیک نظم وکېښ. د صحې کمزورۍ له امله بیرته المان ته ولاړ. په (۱۸۸۵م) کې ئې له میري تینمان (Marie Thienemann) سره واده وکړ او له هغې څخه ئې څلور اولاده وسول. له دې حسیني او شتمني نجلۍ سره نوموړې په لومړي پلا په (۱۸۸۱م) کې ولیده او څلور کاله ئې د هغه مصرف پر غاړه واخیست. هاوپټمان له خپلې مېرمني سره په برلین کې هستوګن سو. مېرمن میرې د خپل مېړه مداح وه، خو په ادب کې ډېره وارده نه وه. کله چې هاوپټمان ادب ته خپله پاملرنه ډېره کړه، نو هغې د نهیلۍ احساس وکړ او له عصبي ستونزو سره مخ سوه. البته د یادوني وړ ده، چې د هغې مالي لاسنیوي له هاوپټمن سره په دې کې مرسته وکړه، چې د یو پیاوړي لیکوال او ادیب په توګه خان مطرح کړي.

په (۱۸۸۵م) کې هاوپټمان د جهیل پر غاړه په یو کوچني کلي (ارکنر Erkner) کې کور جوړ کړ او هلته مراقبه سو. په دې مهال کې نوموړې د خپل ادبي ژوند د لومړنیو وختونو رومانتیک افکار ترک کړل او دې ته قایل سو، چې د ژوند عکاسي باید په ریالیستیک شکل وسي. داچې په دې وخت کې د ساینس د مخانیکي استدلال بازار تود وو، نو هغه هم د علت او معلول او متریالیستانو په عقیده سو. په (۱۸۸۷م) او (۱۸۸۸م) کې نوموړي د (Fasching) او (Hahnwarter Thiel) تر سرلیک لاندي د داستانونو دوې ټولګي چاپ کړې. دا داستانونه په فطري (نچرلیستیک) انداز لیکل سوي دي او کیسې ئې د کلیوالي خلکو پر ژوند راګرځېدي.

هاوپټمان په برلن کې د اوسېدو پر مهال له مترقي روشنفکرانو سره اړیکي پیدا کړې. په دې کسانو کې شاعر او ډرامه لیکوال آرنو هولز (Arno Holz) هم شامل وو. د نوموړې (Neve Gleise) نومي ډرامې هغه خورا ډېر متاثره کړ. هولز په (۱۸۹۱م) کې د (Die Kunst, ihr Wesen und ihre Gesetze) په نامه کتاب چاپ کړ. په دې کتاب کې هغه هڅه وکړه، چې د نیچرلیزم نظریې ته وده ورکړي. هاوپټمان په عملي او نظري ډول د نوموړې دا تاثیرات ومنل او د همدې اغېز په نتیجه کې ئې په (۱۸۸۹م) کې د (Vor Sonnenaufgang) تر سرلیک لاندي ډرامه ولیکله. د دې ډرامې ریالیستیک اړخ خورا تکان ورکونکی وو. کله چې په برلین کې په لومړي ځل تمثیل سوه، نو نندارچیانو نه اټکلېدونکی غبرګون ښکاره کړ. د دې ډرامې کیسه پر یو سوشلیسټ خوان الفرېډ لوټ (Alfred Loth) باندي راڅرخي. هغه د خپل پخواني همصنفي ملګري پر خور مین سوی وي. د نوموړې دا ملګری اوس په یو کان کې د انجنیر په توګه دنده لري او د دې دندې او شتمنۍ له امله په هوا کې سوی وي. الفرېډ له دې سببه خپله مینه (هیلني) پرېږدي او د احساساتو او نهیلۍ له امله ځانوژنه وکړي. تیوډور فونتین پر دې ډرامه باندي کره کتنه وکړه. نوموړی د خپلي کره کتني په یوه برخه کې لیکي: □□□ هغه لیکوال ریالیسټ نه دئ، چې رومانتیزم د فلسفې په څُم کې د رنګولو هڅه کوي. ریالیزم دې ته وایي، چې

يوه ليكنه له سر څخه تر پايه په يوه سُر كي وليكله سي

د هاوپتمان پر لومړنيو ډرامو د هنريک ابسن (Henrik Ibsen) اغېزې ليدل كېږي، خو كله چي نوموړي د سليسيا د اوبدونكو د پاڅون پېښي د (Die Weber) تر سرليک لاندي په يوه ډرامه كي وړاندي كړې، نو د خپل عصر د ډرامه ليكوالو سر لاری وبلل سو. داچي هاوپتمان هڅه وكړه، په دې ډرامه كي د جزياتو تر بريده له رياليزم څخه كار واخلي او د دې پېښو تاريخي اصليت هم خوندي كړي، نو په لومړي سر كي پر دې ډرامې بنديز ولګېد. نوموړی د ډرامې د كركترونو په اړه ليكي: دا هغه كسان دي، چي تيان ئې ننوتلي، ټوخېږي، د اوبدولو پر ماشين باندي موښتي دي او په زنګنو كي ئې د پړلپسې ناستي څخه زخمونه پيدا سوي دي، ښځو ئې د كاليو پر ځای رېښكۍ اغوستي دي، خو ځيني ځواني نجوني له خپل ښځينه صفت څخه برخمني دي. كړه، وړه ئې نازک او سترګي ئې غټي، غټي دي د جوړښت له پلوه دا ډرامه له نوښت څخه برخمنه ده، ځكه دا ويا كركترونو څخه ئې يو هم د اتل په توګه نه دئ، معرفي كړی.

په (۱۸۹۳م) كي ئې يوه بله ډرامه د (Der Biberpelz) په نامه وليكله. دا ډرامه كوميډي جوړښت لري او د نونسمي پېړۍ په اتمه لسيزه كي د برلن په تياتر كي وړاندي سوه. هاوپتمان په دې اثر كي د رياليزم او نچرليزم څخه د وتلو هڅه كړې ده، خو د دې اثر موضوع بيا هم د عامو خلكو ژوند دئ. په (۱۹۹٦م) كي ئې يوه بله ډرامه ولوبول سوه. د دې ډرامې مركزي كركتر يو ستم ځپلی يتيم دئ. هغه د زړه بوږنونكو حقايقو څخه د تېښتي په موخه په خوبونو او خيالونو كي د پناه په لټه دئ.

هاوپتمان تر اوږدې مطالعې وروسته د شپاړسمي پېړۍ د بزګرانو د جنګونو پر موضوع يوه ډېره شهكاره ډرامه (Florian Geyer) وليكله. كه څه هم دا ډرامه په لومړي سر كي له توقع خلاف ډېر ونه ځلېده، خو وروسته د ليكوال له مهمو آثارو څخه وګڼل سوه. په (۱۸۹۷م) كي ئې يوه بله ډرامه د (Versunkene Glocke) په نامه ولوبول سوه. د نوموړي داسمبوليكه ډرامه د يو هنرمند په توګه د هنر د مبارزې پر رول راڅرخي او د ده له مشهورو ډرامو څخه ګڼل كېږي. په (۱۸۹۹م)، (۱۹۰۰م) او (۱۹۰۳م) كي ئې درې تراژيدي ډرامې د (Furhmann Henschell)، (Michael Kramer) او (Rose Bernd) په نومونو وړاندي كړې. په دې ډرامو كي هغه په خپل فطرت كي موجوده نا ارامي او ځپڅپاندي بيان كړې ده. په همدې وخت كي نوموړی پر يوې ځوارلس كلني پېغلچكي وايلن ږغونكي مارګريټ مارشل (Margarete Marschalk) باندي مين سو او تر يوې اوږدې او ځورونكي مبارزې وروسته ئې په (۱۹۰۴م) كي خپلي مېرمني ته طلاق وركړ او په همدې كال ئې له مارګريټ سره واده وكړ. له دې مېرمني څخه ئې يوه لور هم وزوكېده. په (۱۹۰٦م) كي ئې د حسن پر زوال باندي د (Und Pippa Tnazt) په نامه يوه ډرامه وليكله. دا د نوموړي په غنايي ډرامو كي تر ټولو لوړه غنايه ډرامه ګڼل كېږي.

په (۱۹۰۷م) كي هاوپتمان يونان ته په سفر ولاړ. په (۱۹۰۸م) كي ئې د دې سفر يادابنتونه د (Grieshisoher Fruhling) په نامه د خاطراتو په شكل چاپ كړل. په دې

لیکنه کي نوموړي د عیسویت پر روایت او له عیسویت څخه مخکي د بې دینۍ پر تقابل رڼغږدلی دئ. دا موضوع ئې وروسته په دوو ناولونو کي هم وړاندي کړه. په (۱۹۱۰م) کي ئې یو ناول د (Der Narr in Christo Emmanual) په نامه چاپ کړ. په دې ناول کي هغه د عیسیٰ (ع) په رول کي د خپل ټول عمر د یادوني وړ احوال راوړی دئ. همدارنګه په (۱۹۰۸م) کي ئې یو بل ناول د (Kaiser Karls Geisel) په نامه چاپ کړ. په دې ناول کي بیا د ښځینه قشر د شهوانیت پر شدت رڼغږدلی دئ. د دې تر څنګ په (۱۹۱۴م) کي ئې یو بل اثر د (Der Bogen Des Odysseus) په نامه وکیښ، چي د حب الوطنۍ موضوع ئې پکښې را نغاړلې وه.

د هاوپټمان په زړه کي د خپلې شاوخوا له انسانانو سره په بنسټیزه کچه خواخوږي موجوده وه. له دې امله هغه د جرمني تر ټولو ممتاز ټولنیز شاعر ګڼل کېږي. له انسانیت سره د ژوري اړیکي له امله هغه د (ابسن)، (شا) او (سټرنډبرګ) په څېر د هغو نوښتګرو ډرامه لیکوالو په ډله کي راځي، چي نوښتونه ئې خزان نه لري. هاوپټمان د شلمي پېړۍ په دوهمه لسیزه کي په خپلو ډرامو کي له تخیل، اسطوره یې سمبول یزم او فلکوریکو کیسو څخه کار واخیست. په (۱۹۲۸م) کي ئې د (Till Eulenspigel) په نامه یو اثر چاپ کړ. دا اثر هغه خپل تر ټولو ستر اثر ګاڼه. په (۱۹۳۲م) کي د نوموړي یو بل اثر د (Vor Sonnenuntergang) په نامه چاپ سو. دا ډرامه د یو زاړه سړي او پېغلچکي نجلۍ د مینې تراژیدیک داستان دئ، چي کیسه ئې د هغه پر شخصي ژوند باندي ولاړه ده. په (۱۹۳٦م) کي د هاوپټمان وروستی ناول د (Im Virbel Der Berufung) چاپ سو. همدارنګه په (۱۹۳۷م) کي ئې د ژوند د لومړنیو شپږویشت کلونو یادښتونه چاپ کړل. هغه د نازیانو د واکمنۍ په ټوله دوره کي په جرمني کي وو. دا ټول کلونه په پرلپسې ډول هغه د شلر (Schiller) جایزې ته کاندید وو، خو د جرمني حکومت ئې د جایزې د اخیستلو مخنیوی کاوه. په (۱۹۴۲م) کي ئې په اوولس ټوکه کي د کلیاتو مجموعه چاپ سوه. همدارنګه په (۱۹۴۳م) کي ئې وروستی اثر د (Chistophorus) په نامه نیمګړی چاپ سو او د سینه بغل ناروغۍ له امله ئې له دې نړۍ سره مخه ښه وکړه.

پای



ژباړه: میرویس ملګری/هرات

# ښې پرېکړې د درختي د پیوند په څېر وي

پوهېږئ د نړۍ تر ټولو بوخت هوايي ډګر کوم یو دئ؟ سترګې ئې زما په څېره کې ښخې کړې، ما هم د شپږو، اوو ډګرونو نومونه ورته په ګوته کړل، خو ځواب ئې منفي وو. نور زه هم سترې سوم ورته مې کړه ته ئې راته ووايه ښاغلې! په خوږه لهجه ئې وویلږ (شیکاګو، اوهېر Chicago, O'Hare) دا هغه هوايي ډګر دئ چې له ورځې ۱۱۹ نړۍ والې الوتنې ورڅخه کېږي. تر ۲۰۰۸م پورې دا د نړۍ دوهم هوايي ډګر وو. په ۲۰۰۳م کې ئې د شمالي امریکې د بهترین هوايي ډګر ویاړ هم خپل کړ، څلور ترمینله او یو سلو دوه اتیا لوی دروازې لري.

ما ورته د ستاینې په نیت وکتل، خو هغه مسکی سو او راته ئې کړه چې اصلي کیسه خو د هوايي ډګر د نامه ده. اوهېر یو دولتي کارمند وو، بشپړ نوم ئې بیچ او هېر وو. نوموړی د امریکې د جنګي الوتکي پیلوټ وو. په دوهمه نړۍ واله جګړه کې د اوهېر دنده د یوې سمندري بېړۍ ساتنه کول وه، د دې بېړۍ څخه به اوهېر او د ده ملګرو الوتنه کوله او پر جاپانیانو به ئې بریدونه کول. ۱۹۴۱د دسمبر په مابنام اوهېر د خپلو ملګرو سره یو ځای الوتنه وکړه لا لیري نه وو تللي چې اوهېر د الوتکي د تیلو ستني ته پام سو. د الوتکي تېل کم ول. اوهېر خپل مشر سره اړیکه ټینګه کړه هغه ورته د بېرته راګرځېدلو امر وکړ اوهېر سمندري بېړۍ ته په راتږدې کېدلو عجیبه منظر ولید، ۹نهه جاپانۍ الوتکې په سمندري بېړۍ د برید په موخه راروانې وې خو د مخنیوي له پاره ئې هیڅوک نه وو. اوس نو اوهېر ته دوې لارې وې یا به ئې ځان ژغوری او یا به ئې د دې الوتکو سره مقابله کوله. اوهېر یو زړور انسان وو سمدستي ئې د دوښمن الوتکې په نښه کړې، هغه به د فضا څخه پر دوښمن برید وکړ، ځان به ئې وایست او بیا به لکه شاهین ورباندې را څرګند سو. په نیم ساعت کې ئې د دښمن پنځه الوتکې له منځه یووړلې خو د باروتو او مېزایلو کمې هغه اړ کړ چې نوی تکنیک وکاروي، هغه به خپله الوتکه د دوښمن الوتکې ته نږدې کړه او په وزر به ئې ووهل په دې کامیابه تکنیک ئې د دوښمن درې نورې الوتکې هم رانسکورې کړې. وروستۍ الوتکه د پیلوټ د ناغېږۍ او بېرې له کبله سمندر کې ولوېدله. اوهېر په خپله سمندري بېړۍ ناسته وکړه، لږ وروسته ئې

ملګري هم راورسیدل اوهېر ورته ټوله کیسه وکړه خو دا کیسه د هیڅا زړه ته نه لوېدله. هغه وخت کې د امریکې جنګي الوتکو کامرې درلودلې چې جګړه ایز انځورونه به ئې خوندي کول کله چې اوهېر د الوتکې په کیمره اخیستل سوي عکسونه پاک او ملګرو ته وښودل نو په ټوله امریکه کې ئې د اتل نوم یووړ. د امریکې د هر وګړي په خوله کې اوهېر نوم وو. دولت ورته د کال ۱۹۴۲ په فروري کې د دوهمي نړۍ والي جګړې ځانګړی ایوارډ (جایزه) ورکړ. ۲۶ نومبر کال ۱۹۴۳ د دې اتل الوتکه د دوښمن تر برید لاندي راغله اوهېر ئې د تل له پاره راځخه ورک کړ. امریکې حکومت د دې هیواد تر ټولو ستر هوایي ډګر د دې سړي په نامه ونوموی.

سړی چپ سو، ما په جذباتي انداز کې وویل ډېر ښه ښاغلې دا خو رشتیا هم لا ځوابه کیسه وه. هغه وخندل ویل تر دې لا خوندوره کیسه درته کوم راته غوږ سه. په شیکاګو کې د ایزي ایډي په نامه یو وکیل اوسېدی دې وکیل ته الله پاک ډېر ښه فکري ځواک ورکړی وو. کله چې ئې کار پیل کړ نو د ال کپون په نامه د یوه شتمن سره ئې اړیکي زیاتي سوې، ال کپون د شیکاګو د مافیا مشر او وتلی قاچاقبر وو ال کپون ایزي ایډي خپل وکیل وټاکی. هر کله چې به دولت ال کپون ونیوی نو وکیل به په ډېر مهارت بیرته را خوشي کړ. دوسیه به ئې بیرته وتړل سوه. ایزي ایډي نور هغه پخوانی سړی نه وو لوکس موټران، کورونه او ډېره شتمني ئې پیدا کړه دې وکیل یو زوی درلود چې ډېر ورباندي ګران وو، یوه ورځ ئې زوی له ښوونځي څخه په ژړا راغی او د ایزي ایډ پښو کې ولوېدی ویل بابا د کوڅې او ښوونځي کوچنیان راته د ال کپون په نامه وایي او پیغورونه راکوي، پلار ئې د یوازیني زوی خبرو سخت پرېشانه کړ، د پښېمانۍ په حالت کې ئې له ځان سره وویل ما خپل زوی ته د نړۍ ټولې اسانتیاوې ورکړې خو ښه نوم او نښان مې ور نه کړ. پر هغه ځای ئې پرېکړه وکړه چې نور به د ال کپون ملګري نه کوم. سهار له کور څخه د وتلو په وخت کې هغه پوهېدی چې ښایې بیا کور و نه ویني ځکه د ال کپون سره د غدارۍ پایله مرګ وو، خو د دې ټولو خبرو سره سره ایزي ایډي محکمې ته ولاړی، د ال کپون د ظلمونو خلاف ئې عدالت کې شاهدي ورکړه، عدالت ال کپون ته د مرګ سزا واوروله خو په هغه ورځ ایزي ایډي هم د نامالومه کسانو له لوري کور ته د تګ په وخت کې په ډزو وویشتل سو او ومړ.

سړي ما ته وکتل ول اوس نو کیسه ختمه شوه. ما د حیرانتیا په حالت کې ور غبرګه کړه ښاغلې! په دا ډول جاسوسي کیسو خو کتابونه ډک دي. هغه په زوره وخندل ویل زه به اوس یوه جمله نوره ورباندي اضافه کړم نو دا کیسه به د نړۍ تر ټولو ښه او ګرانه کیسه ونومول سي. هغه لکه جادوګر زما ټول حواس د ځان سره یووړل ویل ئې واوره، زموږ د لومړۍ کیسې اتل اوهېر د همدې ایزي ایډي زوی وو، زه حیران پاته شوم څه به مې ویل خو هغه مې خبره را ګوډه کړه. ول زویه: ځیني نېکۍ د خورما د درختي په څېر وي یو نسل ئې وکري، اوبه ورکړي، تر ځوانۍ ئې

راورسوي او خپله لحد ته ځني ولاړ سي بل نسل د هغه نېکي او ښه پر بکړي میوه خوري، که چیري ایزي ایډي خپله لار نه وای بدله کړې نو د هغه زوی به د کومي مافیایي ډلي مشر وو بیا به یو وخت نه یو وخت د پولیسو له خوا وژل کیدلای، نه به ئې تاریخ پاته وو او نه کارنامې، ولي ایزي ایډ خپل زوی ته د ښه نوم ورکولو پربکړه وکړه، خپله ومړ لاکن زوی ته ئې د نېکۍ او رشتیا داسي لاره وښودله چي اوهېر وربانديي قدم کښېښود او د امریکې د خلګو اتل جوړ سو. هغه خپل پلار ته داسي نوم ورکړ چي تر قیامته به ژوندی او تلپاته ویز نو د ایزي ایډ او د هغه د زوی کیسه موږ ته درس راکوي چي ښې پربکړي د درختي (وني) د پیوند په څېر وي، که غواړئ اولاد مو د ګرمۍ، یخ او باران څخه وساتل سي نو د ایزي ایډ په څېر د ژوند په غولي کي د ښو او پر ځای پربکړي پیوند ولګوئ.

***

لیکوال: م. نسیم نوري

## تر ظالم بل بېعقل نسته

وایي چي: سلطان محمود غزنوي و دې خپلي عملې ته وویل چي: تاسي په دې وطن کي شاوخوا وګورئ تر ټولو خلقو بېعقل را پیدا کئ. خلق سره ولاړل، شاوخوا ګوري، آخر ته ئې یو سړی پیدا کی چي په ونه کي د ښاخ پر سر ولاړ او بېخ ئې رېبي. دوباره ټولو پر دې اتفاق وکی چي تر دغه بل بېعقل نسته، نو ئې باچا ته راووست، چي دغه دئ بېعقل چي داسي ئې کول.

سلطان محمود ورته وویل چي: بل بېعقل سته؟ دوی ټولو ورته وویل چي: موږ خو ئې نه وینو. ده ورته وویل، چي: "ظالم حاکم دئ". تر ظالم حاکم بل بېعقل نسته چي د رعیتو سره ظلم کوي او خپل بېخ په خپله کاږي.

نظم

چـا چي ظلـم کی اخـتیار
وې کیښ بېـخ د خـپل تبار

په لستوني کي ئې کښېښود
زهـــرداره افــعي مـــار
ظالم ظلـم پر جهان کـړي
لیکن خـپل کار کي مـردار
خپلي پلې په تېشه پرې کړي
جـاهل نه دئ خــبردار
د دېوال بېخ چي وخـېژي
نـو ئې کله ســته قـرار
درخــته تېنـګه په ریښو ده
قــد قــامت ئې د نـګار
کې ریښې منبې برهــم سي
خود ده غوزاره چـار ناچـار
ژوند ئې څـوک نه بولي ژوند
کـه ئې نوم وي معلومـدار
د خـپل لــبر نفــع دپاره
مســلمان کاندي راغــوزار
ښه په هیڅ وخت کي نه اروي
کې ژوندی کړي څوک په دار
ظلم عــام دئ که پوهېږې
که په لاس وي کــه ګفـتار
مېږی هم د خـــدای ثنا کا
څـــــه لازم ئې دئ آزار
خدایه ورمـــه کـړې و چا ته
هسي نـــوم د ظـلم کار

پام کـوه "محـــمد نسیمه"
چي پېښ نه ســـي پر آزار

(۱۰)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

ليکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

**د ښکلا سالون**

ارشد او اشرف لمونځونه وکړل او بیا ئې ډوډۍ وخوړل. شېرخان او عبدالرحمن د هغوی دواړو ښه میلمه پالنه او عزت وکړ. دوی هم د ډوډۍ تر خوړلو وروسته ولاړ سول ، د تګ اجازه ئې وغوښته او روان سول. کله چې دواړه له کوره راووتل نو اشرف وویل: ما د ډېر وخت راهیسی مسعود ورور نه دئ لیدلی.

ارشد په حیرانتیا سره ورته وکتل او ویې ویل : ته خبر نه یې چې هغه د سردار علی احمد خان سره د جلال آباد عملیاتو ته تللی دئ؟

اشرف: یا، زه هیڅ خبر نه یم. خدای خبر چې د شینوارو ښورښ به آرام سوی وي که یا.

ارشد: ته لکه چې اخبارونه نه لولې؟!

اشرف: فرصت نه وي، خو بیا هم کله کله «امان افغان» ګورم . په دې ورځو کې ورځپاڼې څه وایي؟

ارشد: علي احمد جان د شینوارو یوه جرګه راغوښتې ده او د سولې خبرې اترې رواني دي.

اشرف: بې فایدې دي. داسې ښکاري چې یاغیان به له خبرواترو څخه نور جرئت هم واخلي. له داسې کاره د سرکښو باغیانو د مشرانو د هڅېدو امکان موجود دئ.

ارشد: هو دا خو صحیح ده، مګر څنګه ئې کوې بله څه چاره؟ اصلي خبره دا ده چې اعلیحضرت د وینو توېېدل نه غواړي. ده هدایت کړی دئ چې باید سوله او پخلاینه رامنځته سي.

اشرف: دا د اعلیحضرت امان الله خان زړه سواندي ده. تر ننه د کابل پر تخت دغسي مهربانه، مدبر، لیری لیدونکی او د خلکو او وطن خادم پاچا نه دئ راغلی. خو پر ښورښیانو او یاغیانو باندي دومره مهربانۍ او زړه سوی هم لازم نه دئ.

ارشد: هو، رښتیا هم همداسې ده.

دوی دواړه په همدې خبرو کي چوک ته ورسېدل او د بازار خوا ته وګرځېدل.

کله چي ارشد او اشرف بازار ته ورسېدل نو يو افغان د شا له خوا راغی او د ارشد پر اوږه ئې لاس کېښېښود او د درېدو اشاره ئې ورته وکړه. ارشد او اشرف هم دواړه ودرېدل. دغه افغان په ونه ډېر جګ، چارشانه او غښتلی ځوان وو. لوی کميس او ارت پرتوګ او يوه توره پنډه کرتۍ ئې اغوستې وه. خولۍ ئې پر سر او نازکه لنګوټه ئې پر تړلې وه. هغه کرار ورته وويل چي ارشد آغا! زه تا ته پټ يو څه ويل غواړم.

ارشد دغه نوي شخص ته په ښه ځير وکتل او ورته وئې ويل: هر څه چي راته وايې ښغمه ئې ووايه، دا زما ټينګ ملګری اشرف دئ. له ده څخه زه هيڅ شی هم نه پټوم.

نوی شخص: خو ما ته دا هدايت سوی دئ چي اړونده خبره بايد يوازي تا ته پټه ووايم.

ارشد: چي داسي ده نو سمه ده.

ارشد د دې نوي شخص سره څو ګامه ګوښه ولاړ او بيا هغه ورته وويل: د شوربازار حضرت صاحب خپل دربار ته همدا اوس غوښتی يې.

ارشد: حضرت صاحب چيري تشريف لري؟

نوی شخص: په خپله عالي مانۍ کي.

ارشد: ښه، زه به په شاهي مسجد کي د ماخستن لمونځ ادا کړم او بيا به ژر درسم.

نوی شخص: نن د حضرت صاحب سره لمونځ ادا کړه.

ارشد: هو، سمه ده. صبر وکړه چي زه خپل دوست رخصت کړم.

نوی شخص: ښه دئ، مګر هغه ته هيڅ مه وايه.

ارشد د دغه نوي شخص په ملګرتيا د اشرف خوا ته راغی او ورته ويې ويل: ملګرې! زه همدا اوس يو چيری ځم، سهار به ان شاء الله سره ووينو.

اشرف: ښه به وای چي زه دي هم درسره بېولی وای.

ارشد: زما خو هم همداسي خوښه وه، مګر د مجبوريت له مخي دي نه سم راسره بېولای.

اشرف: ډېر ښه، نو پر خدای دي سپارم.

اشرف غټ غټ ګامونه واخيستل او روان سو. ارشد هم د دغه نوي شخص سره د خبرو په حال کي روان سو. لږ ګړی وروسته دواړه د شوربازار د حضرت کور ته ورسېدل. د هغه د کور مخته ډېري بګۍ او موټرونه ولاړ ول. ارشد چي دومره ډېر موټرونه او ګاډۍ وليدل نو د دې شخص څخه ئې وپوښتل چي آيا نور خلک هم راغلي دي؟

نوی شخص: هو، هر څوک چي وي اوس به ئې په خپلو سترګو ووينې.

ارشد د لويي دروازې خوا ته ورغی خو نوي شخص ږغ پر وکړ چي نن د لويي دروازې له لاري څوک نه سي تللای، په ما پسي راځه.

هغه د ارشد په ملګرتيا د باغ شمالي خوا ته روان سو چي هلته د حضرت صاحب د عالي مانۍ جنوبي دېوال وو چي ډېر جګ وو. د دېوال تر نيمايي چي ولاړل نو دغه شخص

خپل ګامونه کرار کړل. څکه دلته ډېري کوچنۍ کوچنۍ ونې، بوټي او څو اوسپنيزه دروازې وې. پر دغو دروازو د انګورو تاکان راخوړند ول. په تاکانو کې د انګورو وابښکي له ورايه معلومېدل. هغه شخص په يوه دروازه ننوتی او ارشد ته ئې هم د ننوتلو اشاره وکړه. ارشد هم په هغه پسې سو. دواړه کرار کرار مخته تلل څو چې د دېوال پای ته ورسېدل. ارشد دلته يوه کوچنۍ دروازه وليده او هغه شخص دا دروازه وټکوله. لږ شېبه وروسته دروازه خلاصه سوه او يوه ځوانه ښځه راووته چې څراغ ئې په لاس کې نيولی وو. ارشد چې ورته وکتل نو وئې ليده چې ښځه ده. دا يوه ځوانه او ښايسته ښځه وه چې له څېرې څخه ئې نرمښت او لحاظ له ورايه معلومېدی. هغې له دغه شخص څخه وپوښتل چې ارشد دي راوستی؟

هغه ورته وويل چې هو رامي وستی او دغه دئ.

ښځه: ورته ووايه چې دمخه سي او ته هلته د باغ په دروازه کي ودرېږه.

هغه شخص: بالکل سمه ده.

هغه شخص ارشد ته د مخکي کېدلو اشاره وکړه. ارشد هم مخته سو او هغه شخص بيرته پر شا ولاړی.

ارشد حيران سو چې نن ولی په دې استوګنځي کی دومره آزادي ده او د شوربازار حضرت ولي د دې پټې دروازې له لاري داخل کړم. هيڅ نه پوهېږم چې ولي.

ارشد د همدې پټې دروازې له لاری ورننوت او هغه ځواني ښځی د ده تر ننوتلو وروسته دروازه بيرته بنده کړه.

ارشد د ننوتو پر مهال خپل شاوخوا ته وکتل. وئې ليده چې يوې کوچنۍ خوني ته داخلېږی چې معمولي چوکۍ پکښې پرتې دي. د ځواني ښځي په لاس کي د څراغ لمبه خوني ته د ننوتلو پر مهال يو څه وترپېده. هغې ارشد ته له سره تر پښو په ډېر ځير وکتل او بيا ئې ورته وويل: ارشده، ته خو په رښتيا هم ډېر ښکلی او پياوړی انسان يې. د افغانستان زياتي پېغلي پر تا زړونه بايلي. زياتي خو څه، حتی هره پېغله چې تا ويني نو دربانديي مينه کېږي.

ارشد په ډېره حيرانتيا سره د دې ښځي خبري واورېدې، ده څو څو واره تعجب وکړ چې په داسي پټه طريقه سره دلته د راغوښتلو او د دې ښځي د دغسي خبرو مطلب څه دئ.

هغې ښځي بيا وويل: ارشده ! ستا امتحان به واخيستل سي. ته به د کابل د ښکلو ښځو غونډه ويني. د حُسن او ښکلا شاپېرياني به وګورې. مخکنۍ حوري به ستا په مخ کي دوري هوري کېږي. زهد ماتوونکي او زړه راکښونکي سپين مخي به ستا تر نظر لاندي ګرځي راګرځي. مګر يا، زه بايد تر وخت دمخه څه و نه وايم. ما د حضرت صاحب د هيلي پر خلاف خو له مجبوريته څو خبري درته وکړې. لاکن اوس.... څه هيڅ هم نه. ارشده! ته څومره زړه وړونکی يې. په خدای چې ستا پرستش مي زړه غواړي. که زما اختيار

وای نو ته به مي په خپلو سترگو ننه ایستلی وای او یا به مي په زړه کي دننه پټ کړی وای.

ارشد د دې ښځي بې ربطه او چټي خبرو نور هم حیران کړ. خو هغې یو ځل بیا داسي مخاطب کړ: ارشده! راځه چي اوس دي نو د حضرت صاحب حضور ته بوزم.

ارشد هم په پټه خوله د هغې تر شا پسې روان سو. ښځي ځراغ پر دېوالي بخارۍ باندي کښېښود او د ارشد په ملگرتیا له دې خوني ووتله. دلته یو څه تیاره وه.

د قمري میاشتي وروستۍ شپې وې. سپوږمۍ تر نیمي شپې وروسته راختونکې وه نو ځکه دا وخت هره خوا تیاره خپره وه. دا ماڼۍ ډېره غټه او پرتمینه وه. د برېښنا څو خادې پکښې ولاړې وې چي برق ئې دغه عالي شانه ماڼۍ پوره نه سوه روښانه کولای. دوی دواړه په دغه نسبتاً تیاره فضا کي روان ول څو چي یوې لویې خوني ته ورسېدل چي په اصیلو غالیو فرش وه. پر دېوالو ئې د مشهورو ځایونو نقشې ځوړندي وې. د چت (پوښښ) څخه ښایسته قندیلونه راځړېدل. د خوني شمالي خوا ته د سور بخمل چي زرین کار پر سوی وو یو مسند یا تخت موجود وو چي د شوربازار حضرت پر ناست وو. دا مهال لا هغه یوازي وو. ارشد هغه ته نږدې ورغی او په ډېر ادب ئې سلام وکړ. هغه چي ارشد ولیدی نو ډېر خوشحاله سو او د څېرې څخه ئې د تازگۍ او مُسرت نخښې ښکاره سوې او پر ارشد ئې داسي ږغ وکړ: ارشده! راغلې؟! راسه زما څنگ ته کښېنه.

ارشد غوښته چي یوې خوا ته کښېني خو حضرت صاحب تر لاس ونیوی او خپل ځان ته ئې نږدې د کښېناستو اشاره ورته وکړه او بیا ئې داسي مخاطب کړ: کښېنه، همدلته ما ته نږدې!

ارشد هم د ده څنگ ته پر مسند ورسره کښېناست. د شوربازار حضرت وروسته هغې ښځي ته وویل چي بس ته ولاړه سه او په هغه خونه کي اوسه چي درته ویل سوي دي.

ښځه بیرته ووتله او د شوربازر حضرت ارشد ته په ورین تندي وکتل او بیا ئې وویل: ارشده! ته خو بې له بلني څخه نه راځې، ها؟!

ارشد له شرمه سر کښته نیولی او بیا ئې په ځواب کي ورته وویل چي څه به درته عرض کړم، د صاحب منصبۍ بوختیاوې فرصت نه راکوي. زه تل غواړم چي ستاسي په حضور ډېر ځله مشرف سم خو مجبوریتونه مي د دې کار خنډ وي.

د شوربازار حضرت: ته ناحقه د صاحب منصبۍ فکر کوې. زه به ستا قوماندانۍ ته ووایم چي تا مصروف نه کړي.

ارشد: حضور خو پر ما ډېر پام کوي او خیال مي ساتي.

د شوربازار حضرت: زه اصلاً غواړم چي ته هر وخت زما سره موجود اوسې. ته پر ما خورا ډېر گران یې. ما ستا حالات وپلټل او خبر سوم چي د شېرخان د لور حسن جهاني سره مینه کوې. حسن جهانه په رښتیا هم ډېره ښایسته نجلۍ ده. ستا وړ ده او ته هم د هغې لایق یې. خو زما خوښه نه ده چي ته د هغې سره واده وکړې. علت ئې دا دئ چي شېرخان

شتمن نه دئ. هغه خپلي لور ته په قلنګ کي چنداني سامان نه سي ورکولای. که ته د کوم بډای شخص د لور سره واده وکړې نو ښه به وي. په ټول کابل کي ښايي داسي څوک پيدا نه سي چي تا خپل زوم کړي. ما نن د کابل د لويانو، خانانو او مهمو اشخاصو ټولي ښايسته لوني او پېغلي راغوښتي دي. زه به تا ته دغه حوري درښکاره کړم. له هغوی څخه چي هره يوه ته خوښه کړې بس زه به ئې در وغواړم.

پر ارشد باندي د شوربازار د حضرت دغه اوږد بيان ډېر بد ولګېدی خو د شرم او حيا څخه ئې هيڅ هم و نه ويل بلکي د شرم له امله ئې خپل سر نور هم کښته نيوی. د شوربازار حضرت ده ته په ډېر غور او ځير سره کتل او بيا ئې ځني وپوښتل: ارشده! ته څومره شرمناکه يې، ستا په مزاج کي څومره حيا نغښتې ده. ستا همدا حيا ډېره په زړه پوري ده. زما څخه دومره ډېر مه شرمېږه او نه هم زما دومره ډېر ادب او لحاظ کوه. راځه چي د دغو حورو ديدن درباندي وکړم.

د شوربازار حضرت ارشد تر لاس ونيوی او راولاړ سو. ارشد هم په پټه خوله راولاړ سو. دواړه له دې خوني څخه دباندي راووتل او يو څه ليري هغي خوني ته ورغلل چي ارشد څو ورځي مخکي هم ورته راوستل سوی او پنځه افغانان پر څوکيو پکښي ناست ول او د هغوی مخته پر مېز باندي توپکونه پراته ول. دوی په دې خونه کي تېر سول او برابر لوی سالون ته ولاړل. د سالون په راسته خوا کي يوې دروازې ته ننوتل. له دروازې څخه په تېرېدو سره هغي خوني ته ورسېدل چي څو ورځي مخکي هم ارشد د مسعود سره ورته راوستل سوی وو. دې ځای ته ئې د ښځو خونه ويل.

د يو لوی او پراخ سالون دروازې ته په رسېدو سره د شوربازار حضرت يو څه کرار سو. د هغه له دننه د ښځو خواږه ږغونه، خنداوي او خبري اورېدل کېدې. د شوربازار حضرت ودرېدی او ارشد ته ئې وويل: ارشده! زه ستا سره دننه دغو شاپېريو غوندي ښايسته ښځو ته نه سم تللای. هغوی به ستا په ليدو سره مخونه پټ کړي. نو راسه، زه دي داسي ځای ودروم چي له هغه ځايه به دغه ټولي حوري ښه تر اوليدلای سې خو هغوی به تا نه ويني.

د شوربازار حضرت تر دې خبري وروسته د ارشد لاس ونيوی او د همدې خوني غربي خوا ته ئې بوت. دا په يوې کوچنۍ خونه پوري مښتی پراخ سالون وو چي دغه حوري او د شوخو سترګو شاپېرياني پکښي راغونډي سوي وې.

په دې خونه کي يوه جالۍ وهل سوې وه چي له هغې څخه د مخامخ خوني هر څه واضح معلومېدل. د شوربازار حضرت دغه جالۍ ته په رانږدې کېدو سره ارشد ته وويل چي د دې جالۍ څخه ورته ګوره. ته به د ښکلا او حُسن داسي بې ساري انځورونه ووينې چي د ليدلو له پاره ئې لمر او سپوږمۍ راخيژي.

ارشد هم جالۍ ته نږدې راغی. ده د دې خوني خوا ته وکتل چي ډېره ګڼه وه. ښه عصري کوچونه او څوکۍ پکښي اوډلی ول. پر دېوالو باندی په فارسي او عربي ژبو ډول ډول متلونه ليکلي او ځړېدلي ول. پر فرش باندي نازکي او ښايسته پېغلي، ځواني ښځي او

نجوني په ناز او خوش طبعۍ سره ناستي وې
چي اصيل وربښمين لباسونه ئې اغوستي ول.

هسي خو د افغانستان ټولي نجوني
ښايسته دي، خو دغه سپين مخي گرده د
خانانو او مخورو د کورونو څخه وې چي په ناز
او نعمت سره لوی سوي وې. دا چي کارونه ئې
نه کول او دباندي دومره نه راوتې، دوړو او لمر
نه وهلې، په کورونو کي د دود او لوگي څخه
بېغمه وې نو مخونو ئې نوره ښکلا او ځلا هم
لرله. د دوی پر مخونو گلابي رنگه طبيعي
سرخي خپره وه. ټولو غټي، توري، تېزي او
شوخي سترگي لرلې چي په ليدو ئې د سړي
زړه ورکشاوه. يو تر بله چي ئې خبري سره
کولې نو د مخونو نور او د بدنونو کشيش ئې
نور هم ډېرېدی او بالکل د مځکنيو فرشتو
غوندي معلومېدې. د هغوی کالي او پوښاک
دومره عمده وو چي انسان ئې نور هم بې
طاقته کاوه. دغو ټولو پيغلو او نجونو پر خپل
طبيعت برابري گېڼې هم په ځانو پوري کړي
وې چي د دوی زېب او زينت ئې څو چنده
کاوه.

ارشد چي دغو بې حده ښايسته نجونو ته
وکتل نو ډېر حيران او گوته په غاښ سو. داسي
ئې وانگېرل لکه د شاپېرانو محل ته چي
مخامخ ولاړ وي او هغوی ويني.

هره نجلۍ په رښتيا هم د شاپېرۍ
غوندي ښايسته وه، د بېلابېلو رنگونو لرونکو
جامواغوستلو ئې د هري يوې حسيني ځېرې
يو نه برداشت کېدونکی حالت غوره کړی وو.

دا نجوني ډېري شوخي وې. په خپلو
منځو کي ئې خنداوي او ټوکي کولې. يوې به
بله تخوَله (تخنوله)، بلي به بله تر گوتو ونيوله
او هغې به دا مهال ناره وکړه او بې اختياره به
وغورځېده او خوله به ئې له خندا ډکه سوه او
خپله صراحي غوندی نرۍ غاړه به ئې دوري
هوري وخوځوله او په يو جانانه انداز به ئې
هغي بلي ته وکتل. اول به ئې تندی لږ گونجي
کړ او د خنجر غوندي تېره وريځي به ئې هم
پورته وغورځولې خو ژر به ئې د ناز په خندا
سره پر هر څه غېږ راوگرځول. کله چي به گوته
نيوونکي ونيوله نو ورته وبه ئې ويل چي آها!
درد درغی؟! خوابدې سوې؟! خدای دي خير
پيښ کړي، اوس نو عتاب راناز لېږی! هغه بلي
به وخندل او قهرجن حالت به ئې والوت. يوې
به خپل تور مار غوندي بربښندوکی چوټي پر
بلي واچاوه او ورته و به ئې ويل چي هله، مار!
نو هغه به اول وبېرېده او پورته به وغورځېده او
د مخ نور به ئې يو څه پيکه سو اود هوسۍ
غوندی له ښايسته غټو سترگو به ئې
وارخطايي څرگنده سوه. خو کله چي به پوه
سوه او د ناز خنداوي به وسوې نو دا به هم لږ
وشرمېدله او د نورو سره به ئې د سپيني خولې
خندا بدرگه کړه. هو، په سينه کي زړه لرونکي
انسان به څنگه د دغو اداگانو او نزاکتونو څخه
خپل زړه ژغورلای سو.

ارشد د دغو حورو صورتونه، د هغوی ادا
گاني او د هغوی زړه پارونکي او خوش طبعه
ټوکي ليدلې او ډوب ورته تللی وو. ده دا هېره
کړې وه چي د شور بازار حضرت هم د ده سره
همدلته ولاړ دئ.

د شوربازار حضرت ده ته خورا په دقت او
حسابي ډول کتل او موسکا ئې كوله. کله چي

هغه ارشد په داسي حال کي لیدی چي له دنیا بې خبره او په ننداره کي ډوب وو، نو کرار راولاړ سو نږدې ورغی او ورو ئې ورته وویل چي ارشده!

ارشد دومره ژور تللی وو چي د شوربازار د حضرت ږغ ئې قطعاً وا نه وربدی. نو ځکه حضرت د ده پر اوږه لاس کښېښود او ورته وېې وویل چي ارشده!

ارشد چي له کومو ژورتیاوو څخه راټوپ وهل او په حال کي راغی، نو یو دم ئې حضرت ولیدی. بس وشرمېد او وېې خندل. حضرت ورته وویل: ارشده! ته خو په دې ننداره کي دومره غرق سوی یې چي هر څه دې هېر کړل.

ارشد سر ځوړند کړ او وېې ویل: حضرت صاحب، زه همدا اوس د ښکلا په یوه داسي وادي کي ولاړ وم چي در او دېوال ئې درلود، طاقونه او تاقچې ئې لرلې، مځکه او فرش ئې درلود، آسمان ئې درلود، روښنایي ئې لرله او سپوږمۍ ئې لرله...

حضرت د ده خبره غوڅه کړه او په خندا ئې ورته وویل چي په دغو کي د ښایست کوم لمر هم وو؟

پر ارشد لا دا مهال هم د ځان هېرېدو حالت خپور وو او وېې ویل: له دوی څخه انتخاب مشکل دئ.

حضرت : ښایي تا په ښه غور نه وي ورته کتلي.

ارشد: زه خو دا دئ په ډېر غور او تعمق سره ورته ګورم. ما ته دوی ټولي سپیني سپوږمیاني ښکاري.

حضرت: آیا تا په دغو کي کومه یوه ځان ته انتخاب نه کړه؟

ارشد: متأسفانه یا.

د شوربازار حضرت په ډېر حیرت سره ارشد ته وکتل او وېې پوښتل چي ولي؟

ارشد په شرمناکه لهجه سره ځواب ورکړ چي تاسي عالي جناب ته ئې علت ښه ترا معلوم دئ.

حضرت: یعني دا چي دغه د سپوږمۍ غوندي سپیني او ښایسته نجوني د حُسن جهاني سره نه سي برابرېدای؟

ارشد: امکان لري چي آن تر هغې هم ښایسته وي، لاکن....

د شوربازار حضرت ئې خبره قطع کړه او وېې ویل: مطلب دا چي ستا په زړه او دماغ کي د حسن جهاني ښکلا ځای نیولی دئ؟!

ارشد سر کښته کړ او په سنجیدګۍ سره ئې ځواب ورکړ چي هو، همداسي ده.

د شوربازار حضرت: ارشده! زه نه غواړم چي تا مجبور کړم. که څه هم دا نجوني ډېري ښایسته دي، د دوی پر خدای ورکړي حُسن باندي آن فرشتې هم ځانونه قربانوي، خو رښتیا دا ده چي حسن جهانه تر دغو ټولو ښایسته ده. دا چي ما نن د کابل دغه حور صفته نجوني دلته رابللي دي ، ته مي امتحانولې. کله چي تا دغو نجونو ته په ډېره مینه او لېوالتیا سره کتل نو ما داسي فکر وکړ چي ته به حسن جهانه هېره کړې او په دغو ښکلو کي به یوه خوښه کړې، خو اوس... راته معلومه سوه چي ته د اوم او بازاري محبت لرونکی نه یې بلکي یو پوخ او ماهر عاشق یې.

نو اوس به زه ژر تر ژره کوښښ وکړم چې د حسن جهاني سره ستا کوزده وسي.

ارشد: زه د عالي جناب د پېرزوینو او عنایتونو بېحده ډېر ممنون یم.

د شوربازار حضرت: ښه، نو اوس راځه زما سره.

ارشد هم بې له دې چې څه ووایي په خاموشۍ سره د حضرت تر شا پسې روان سو. هغه یو څه ګوښه ده ته وویل چې ارشده! کومه ننداره چې دې اوس وکړه، حال ئې چا ته مه وایه.

ارشد: زه داسې احمق نه یم.

د شوربازار حضرت: ښه، اوس ته په پټه خوله او کرارۍ سره دباندې ووزه. ګوره، هغه مخامخ کوچنۍ خونه چې د څراغ پیکه روښنايي ځنې راوزي، برابر هغې خونې ته ورسه. هلته به یوه ښځه ووینې. یعني هغه ښځه چې ته ئې همدلته راوستلې وې. هغه به تا دباندې ورسوي.

ارشد هم حضرت ته سلام وکړ او مخامخ هماغه خونې ته روان سو. حضرت هم بېرته پر شا روان سو.

ارشد کرار کرار روان وو څو چې هماغه خونې ته ورسېد. دا هماغه خونه وه چې دی یو ګړی مخکې د باغ له لارې ورته راوستل سوی وو. هماغه ښځه پکښې ناسته وه چې دی ئې د حضرت خونې ته بیولی وو. هغې چې ارشد ولیدی نو په خندا ئې ورته وویل چې ووایه، کومه شاپېرۍ دې خوښه کړه؟

ارشد: ما پخوا لا د ځان له پاره یوه شاپېرۍ خوښه کړې ده.

ښځه: او هغه حسن جهانه ده؟!

ارشد حیران سو چې دا ښځه د حسن جهاني او زما سره د هغې په اړیکو څنګه خبره ده، حال دا چې ما همدا اوس فقط څو ساعته مخکې هغې ته د خپلې مینې څرګندونه وکړه او د خپل محبت او الفت اقرار مې ورته وکړ.

ده دغه ښځې ته په ډېر غور سره وکتل او ترې وې پوښتل چې ته څنګه په دې راز خبره یې؟

ښځې وخندل، او وې ویل: بې تجربې خوانه! د مینې او محبت افسانه ډېر ژر تر بامونو راتېرېږي او خپرېږي. ستا د محبت راز ټولو ته معلوم سوی دئ.

ارشد: آخر دا پټ راز خلکو څنګه معلوم او کشف کړی دئ؟

ښځې بیا په خندا ورته وویل: ستا په کړنو ټوله خلک خبر دي، هغه دا چې کله حسن جهانه د بچهٔ سقاو ملګرو تښتولې وه نو تا هغوی وځارل او د بچهٔ سقاو تر پنځې پوري ورغلې او هغه دې راخلاصه کړه.

ارشد پوه سو چې دغه پټ راز پخپله بچهٔ سقاو رسوا کړی دئ. نو دې ښځې ته ئې وویل: ښه، اوس زه دباندې وځم.

ښځه: هو، ولې نه. ښځه رامخته سوه او د دروازې د خلاصولو په ترڅ کې ئې ورېل: ارشده! ته بېحده ډېر ښایسته یې، زه دعا در ته کوم چې خدای دې له بد نظره وساته.

ارشد په خندا ورته وویل چې، ستا څخه ډېر منندوی یم.

ارشد هم له خونې راووتی او مخ د انګورو پر مَنا روان سو. له دې ځایه د تاکانو او فلزي دروازو څخه راتېر سو چې یوه تیته رونا پر خپره وه او مخامخ د باغ د دروازې پر خوا ورغی. هلته هماغه نوی شخص ولاړ وو چې دی ئې له ځان سره همدې مانۍ ته راوستلی وو. هغه ورته وویل: بختور ارشده! سلام.

ارشد د سلام ځواب ورکړ او خدای په امانی ئې ورسره وکړ او ګړندي ګامونه ئې د خپل کور پر خوا واخیستل.

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادؤنه

## د پالبینۍ حقیقت او افسانه

هر کال به د اهاړ له را رسېدو سره سم د کراچي ښار د بَرک (برق) د نوبتي پرچوَییؤ کړؤنکي تکلیفؤنه هم پیل سول. په پینځه څلوښنت - پینځوس درجې گرمۍ کښې د بې بَرکۍ کړاؤنه او جنجالؤنه و هر چا ته د پوهېدو وړ دي. که څه هم د فابریکو او تجارتي مؤسسو د بَرک وضعه به د ښلابېلؤ دلایلؤ له مخي تر کورو ډېره ښه وه، خؤ سره له هغه هم د پاکستان په شرایطؤ کښي له دې ستونزې څخه یومخیز خلاصؤن تر مستحیلاتؤ په کمه نه ؤ. زمؤږ د فابریکې هؤښیار او اتیاتکار خاوَند د دغه راز ناڅو او پرچوییؤ پر مهال د تولیدي بهیر د جاري ساتلؤ دپاره د فابریکې په یوه کؤنج کښي خورا لوی او پیاوړی جنرېټر چمتؤ ایښئ ؤ، چي د ښاري برېښنا تر بیا را تگ پوري بې (به یې) د فابریکې ټول ماشینؤنه، پکې او څراغؤنه روښانه ساتل. په خینؤ استثنایي حالاتؤ کښي به د پرچوییؤ وخت دؤنه اؤږد او څنډنی سؤ، چي په ډیزلي جنرېټر به د بسته فابریکې د سوو ماشینو، پکو او څراغو روښانه ساتل، له تخنیکي او اقتصادي لحاظه ډېر گران کار ؤ. د فابریکې مالِک به له ناچارۍ څخه په پای کښي د کارگرانؤ او مامؤرانؤ د رخصتولؤ پرېکړه وکړه. د وختي رخصتۍ دا ډَول پرېکړه به ښېله شکه و کارگرانؤ او مامورانؤ ته د زوی زېری ؤ، که څه هم هر چا به په خپله د ټرانسپورټ بندوبست کاوه.

په داسي حالاتؤ کښي به زمؤږ پر ډیپارټمینټ سرېېره، د فابریکې د نورؤ ډیپارټمینټو ځینؤ کارگرانؤ هم په هغه ریل گاډۍ کښي ځانؤنه رسول، چي له فابریکې څخه تقریباً نیم کیلو میټر لیري د عمومي سړک پر غاړه درېدله. دا په کراچۍ کښي یوازنۍ ښاري ریل گاډۍ وه، چي د ښار د شمال او جنؤب یاني «شېرشاه» او «ملیَر کینټ» تر منځ یې تگ راتگ کاوه. په دې چې د سفر واټن ډېر اؤږد او د گاډییؤ شمېر ډېر لږ ؤ، نو کله کله به زمؤږ د کورو ږ خوا ته تلؤنکې گاډۍ تر شل - پینځه ویشت دقیقو پورې وځنډېدله. په شرو (شروع) کښي ځینؤ کارگرانؤ له ستېشن څخه د سفر ټکیسان (ټکیټان) رانیول؛ خؤ له هغه وخته چي پوه سول، په گاډۍ کښي د کابلیانؤ په اصطلاح بېخاري ده، بیا نو زیاترؤ پاکستانیانؤ غؤندي

زمؤږ همکارانو هم د ټکیس و رانیولو ته زړه نه ښه کاوه.

خیر، تر څه ځنډ وروسته د «ملیّر کینټ» ګاډی را و رسېدله؛ او زموږ له ډیپارټمینټ څخه څلور همکاران د «ګلشنِ اقبال» په نیامت، د ګاډی په یوه ډبه کښې سپاره سؤؤ. زمؤږ له څلورؤ همکارانو څخه رفیع جان او زه د «ګلشن اقبال» له لاري و «سوهراب ګوټ» او دوه نور همکاران، شفیق جان او احمدشاه، و «ګلستان جوهر» ته تلل.

د لاري په اوږدو کښي د رفیع جان مسخرو او ناټکییؤ زمؤږ د ډبې له سپاریانؤ څخه سدو بد ورک کړئ ؤ. کېله والا و نخودوالا و سیګریټ والا او داسي نور یې هیڅوک پر ارامه نه پرېښاوه. و لالؤکېت ( لیاقت آباد) سټېشن ته په رسېدو سره ګاډی ناببره ودرېدله. څه ګړی مؤ په ګاډی کښي دننه، څه ګړی مؤ تر ګاډی دباندي د سټېشن د څرمه ونؤ تر سیوري لاندي، په بې صبری سره انتظار وکئ، خو د ګاډی د بیرته چالانېدو هیڅ خَرَک او دَرَک نه ښکارېدئ.

– هارؤن جانه! څه کؤؤ؟ تر څو به و دې پدرلانته غؤرازه ګاډی ته ولاړ یؤ. شفیق جان په داسي حال کښي را ږغ کړه، چي په راسته لاس یې د غرمنی ډوډی فلزي لوښی (د پاکستانیانؤ په اصطلاح بَرتَن) او د چایؤ ترموز نیولي وه؛ او په چپه لاس یې د اوږې په کوچني سپین و تور چارخانه دؤسمال د تندي خولې پاکولې.

– هارؤن جانه! در ځئ چي ځؤ، د ګاډی کؤلمه شکېدلې ده. نور انتظار هیڅ پایده (فایده) نه کیي. رفیع جان په خپل همېشني پؤزخندي انداز له آبله سره را ناره کړه.

– سمه ده. درځئ.کریم ابات (کریم آباد) ته به ور چکر سؤ، هورې د هرې خوا موټر پیدا کیږي؛ احمدشاه ته هم ور ږغ کئ، چي خپل بار و بُنه له ګاډی څخه را واخلي. ما ور غبرګه کړه.

احمدشاه د رهي کېدو د خبر په آروېدو سره د سترګؤ په رپ کښي را وځغستل. شفیق جان او زه په کراره کراره د افغانستان د سیاسي حالاتؤ په اړه په خبرؤ او تبصرو بؤخت ؤ، چي رفیع او احمدشاه د «لالؤکېت» سټېشن او «کریم ابات» چَؤک تر منځ د ښی لاس په دؤکانو کښي د یوه پالبین (فالبین) پر دؤکان سترګي ولګېدې.

– راځئ چي په دې پالبین خپل پالؤنه وګورؤ، ښېله هغه هم نن وختي دئ. رفیع الله په داسي حال کښي چي تر مؤږ څو ګامه دمخه رهي ؤ، په هیجاني لهجه را ږغ کړه.

– ریشتیا وایي. راځئ چي ورسؤ یو ګړی به مؤ سات هم تېر سي. شکرانه یې هم ګرسره لس رؤپۍ ده. احمدشاه هم د لوحې تر لوستلؤ وروسته را ناره کړه.

– را څه هارؤن جانه! تیار کار دئ. هم به پال و ګورؤ هم به تماشه وکؤ. نه پوهېږم په دې تندي کښي څه غوَل سوي دي، چي یوه مي نه دوې کیږي؟ شفیق جان په داسي حال کښي دا دردناکه جؤمله و ویله، چي د راسته لاس په پنجه یې څو واره خپل تندی و ټکاوه.

– درځه! رفیع او احمدشاه وختي لا و دؤکان ته ور ننوتل. ما یې په جواب کښي وویل.

د «کریم ابات» تر پلهٔ را په دې خوا د پالبینئ په دغه خوار او نتلي دؤکان کښې د پاخه عمر یو سرلځی، زړ خریلئ، جګ، نری، توربخوَن سړی ناست ؤ، چي پر اوُردؤ سربېره یې په روانه انګرېزي هم خبري کولې.

په پاکستان، خاصتاً کراچئ کښې د تعویذګرانؤ، جادوګرانؤ، پالبیّنانؤ او کف شناسانؤ (ورغوي کتوّنکؤ) خورا لوی کاروبار ؤ. په هر بازار کښې ارؤمرؤ د دغؤ کسانؤ یوه یا څؤ لوحې تر سترګؤ کېدلې. ځینؤ تعویذګرانؤ او جادوګرانؤ، چي ځانؤنو ته بې د عامل پروفیسرانؤ نؤمؤنه لیکلي وه، په خپلؤ لوحو او چاپي پاڼؤ کښې د کوډؤ له ماتولؤ څخه نیولې د نافرمانه مایني او اولادو تر مطیع کولؤ، د راز راز کورنییؤ شخړو د حلولؤ او د رنګارنګ ناروغییؤ تر معالجه کولؤ، کار مؤندلؤ، بخت خلاصولؤ او داسي نورؤ مشکلاتؤ تر لیري کولؤ پوري، بېلابېلي مسألې کښلي وې. د عامل پروفیسرانؤ د کمالو او هؤنرو لیست به دؤنه اوږد او اَرت ؤ، چي بې مړي ژوندي کولؤ بې د پاکستانئ ټولنې هیڅ ستونزه او ناخواله تر واک دباندي نه وه.

و دې معجزه ډَوُله ادعاوؤ ته په کتوسره به پوهؤ او لوستؤ کسانؤ هیڅکله په جدي او درنه سترګه نه ورته کتل. دا چي زما د همکارانؤ په زړو کښې څه تېرېدل، یو خدای خبر ؤ، خؤ ما شخصاً د عامل پروفیسرانؤ پر لوُحو لیکل سوي ادعاوي د عامؤ خلکؤ د غؤلولؤ او شکوَلؤ بېشرمانه لار ګڼله. البته، په افغانستان کښې مي هم د دغه راز کسانؤ پر عجب وغریبؤ ادعاوؤ هیڅ باور نه را تئ. په دې خاطر نو د «کریم ابات» د پالبین و دؤکان ته ورتګ د عقیدې او ارادت له مخي نه، بلکي د ساتېري او پلټني یوه هڅه وه، چي د رفیع الله او احمدشاه په غوښت او نوښت وسوه؛ خؤ تر پال کتني څه مؤده وروسته مي له ځانه سره و ویل:

«کشکي مي دا پلټنه ډېره پخوا کړې وای.»

څه سر به مؤ در خوُږوَم، زموُږ شوخ او شراراتي همکار، رفیع جان، د شفیق جان او زما تر ور رسېدؤ مخکي لا د پالبیین اکا و مخ ته ناست ؤ؛ او په داسي غوَر و دقت یې د خپل پال و تعبیر ته غوَږ نیولئ ؤ، چي تا به ویل د خدای تعالی له مکرمي پریشتې سره په راز و نیاز بؤخت دئ.

– مور و پلار دي ډېر ازار کړي دي؛ هیڅکله پر یوه کار نه ټېک کیږې؛ څو روځي په دې کار، څو روځي په هغه کار، نور کله بیا بېکاره او بېروزګاره په کور کښې ناست یې؛ کله کله نشه هم کیې؛ له هیچا سره غاړه نه وړې؛ همېشه دې پر دې یا هغه مسأله له خلکؤ سره کړپ و کرؤپ یي... پالبین اکا و رفیع الله ته دا خبري کولې، چي شفیق جان او زه بې ودؤکان ته ور ورسېدؤ.

د پالبین اکا دغؤ او داسي نورؤ خبرؤ هک پک کړم؛ ځکه هر هغه چي و رفیع الله ته و ویل سوه، په سل کښې سل ریشتیا وه. وروسته احمدشاه په خپل رَوَڼ هغه مکعب شکله فلزي دانه، چي د کمسایي له دانې سره ورته وه، پر هغه څو خانه یي کاغذي جدوَل و لغړوَله، چي د پالبین اکا و مخ ته هوار ؤ.

– رفیع جانه! دا خبري یې په څه اساس در ته وکړې؟ دمخه یې څه پؤښتني مؤښتني

در څخه وکړي که څنګه؟ ما د احمدشاه د پال کتني پر مهال له رفیع الله څخه په نسبتاً مخفیانه بڼه پوښتنه وکړه.

– یا یا هیڅ سوال و جواب مؤ نه دئ سره کړئ. د کمسایي هغه دانه مي پر کاغذ ګېله کړه؛ او تر هغه وروسته یې دا خبري را ته و ویلې. د رفیع جان د دې خبرؤ په آروېدو سره زه او شفیق جان نور هم هېښ پېښ سؤو.

پالبین اکا و جدول ته تر لنډي خؤ ژوري او دقیقي کتني وروسته، د احمدشاه د پال په تعبیر شرو وکړه. د ده د پال په داستان کښي د مور و پلار د ازار، د کار او بېکارۍ یا ښه او بد خؤۍ هیڅ یادوَنه و نه سوَه. د رفیع الله پر خلاف، د احمدشاه د پال په تعبیر کښي زیاتره د کور نییؤ شخړو او لانجو خبري و سوې، چي زما او رفیع الله یې په ریشتیا او درواغؤ هیڅ سر نه خلاصېدئ؛ ځکه احمدشاه تازه د کابل د تنظیمي جنګو په جریان کښي وکراچۍ ته راغلئ ؤ. زمؤږ سره یې تر دوو– درو میاشتو زیاته سابقه نه لرله. پلار یې په آریانا افغان هوایي شرکت کښي کار کاوه؛ او خپله د کابل پوهنتؤن د اقتصاد پوهنځی محصل ؤ، چي د جنګ او وحشت په وجه پر نیمایي ځني پاته سوې وه. د کورني ژوند او کور نییؤ شخړو په اړه یې زمؤږ ذهنؤنه بالکل خالي وه.

– ځنګه ؤ پال یې سم در ته و وایه که غلط؟ شفیق جان څو ثانیې وروسته په تلوسې سره له احمدشاه څخه پوښتنه وکړه. احمدشاه لا د مناسب جواب په مخسد په ذهن کښي خبره جوړوَله، چي ده بیا ور ته و ویل: زما په ګؤمان د مشرانؤ د شخړؤ او جنجالو خبري خؤ یې ګرده سهي در ته و ویلې. په دې چي تا په خپله څه وخت دمخه په فابریکه کښي د پلار او اکاګانؤ د جاروجنجال خبري را ته ویلي وې. په دا نورؤ خبرؤ دي زه نه یم خبر، چي څؤنه یې سهي وې څؤنه غلطي.

– خبري یې په سل کښي اتیا – نیوي ریشتیا وې. احمدشاه د تأیید په بڼه د سر په ښوروَلؤ سره جواب ورکئ.

– شفیق جانه! کښېنه چي وار دي دئ.

– اول دآبل ملګري پیس (فیس) راکئ، بیا به ستا پال و ګورم. پالبین اکا په نرمه او خندنۍ لهجه و شفیق ته و ویل.

– ژر کوه لسی را واړه. رفیع و احمدشاه ته ور ږغ کړه.

احمدشاه د خړ رنګه خمتا کمیس له پورتني جېب څخه لسی را وایستئ؛ او په چټکۍ سره یې و شفیق ته ور واړاوه. شفیق له خپل لسي سره یو ځای دواړه د پالبین اکا و مخ ته کښېښوول، چي هغه هم څو شېبې وروسته تر خپلي ژړ رنګي کؤچنۍ نرۍ کوربچې لاندي کښېښوول.

– دا مُهره واخله؛ او په بسم الله سره یې پر دغه جدول ولغړوَه. پالبین اکا و شفیق ته لارښووَنه وکړه.

– چاچا چي! بسم الله ولي په دې کار کښېباسې؟! د اسلام او پالبینۍ تر منځ اړه او مانده سته.؟! ما په طنزیه لهجه ور ږغ کړه.

– نه وروره! د پالبینۍ او اسلام تر منځ هیڅ اختلاف او تضاد نسته. څلوېښت کاله کیږي، چي په دغه کسب و کار اخته یم. همېشه مي و هر چا ته ویلي، چي هر څه د الله

تعالی په لاس کښې دي. زه یوازې هغه څه در ته وایم، چې ستاسي په تقدیر کښې لیکل سوي دي. تاسي ټولو ته بیا هم وایم، چې زه د هیڅ شي د زیاتوَلو یا کموَلو واک نه لرم. د هر چا خپل نصیب او قسمت دئ. په دې خاطر بهتره ده هر څوک په بسم الله سره دغه دانه د کاغذ پر مخ ولغړيي.

د پالبین اکا پخو خبرو وار په وار زما پر شکاکو مغزو هم اغېزه کوله.

– څه نو بسم الله وکه! رفیع، احمدشاه او ما درو سرو په یوه ږغ و شفیق ته د مهرې ګېلوَلو سپارښتنه وکړه. شفیق په ډېر اتیات دانه د جدوَل پر مخ ګېله کړه؛ او د خپل پال و تعبیر ته دَم و دوُد کښېناست.

پالبین اکا د مهرې او جدوَل تر دقیقي کتني وروسته، د شفیق د پال په تعبیر داسي شرووکړه:

– ورور جانه! په تا پسي د یوې ښځې دوُعا ده، چې تر اوسه یې له هر ډَول خطره خوندي کړئ یې؛ ډېري پیسي دي و لاس ته در خي، خو یوه دي په لاس کښې نه ټینګیږي. دوُري هوُري دي ډېر سفروُنه کړي، خو تر اوسه لا سرګردانه او لالهانده ګرزې ...

د دې خبرو په آروېدو سره مي له ډېره تعجبه پر وجوُد وېښتان شخ ودرېدل. رفیع او احمدشاه هم له حیر ته چپه (چوُپه) خوُله ولاړ وه؛ خکه تر دې دمه د پالبین اکا په تعبیر کښې هیڅ داسي خبره و نه ویل سوَه، چې د شفیق جان له کورني ژوند، خوُیو او سرګردانییوُ سره سموُن و نه لري. د شفیق جان د سپینسري مور په ګرانښت او دوُعاوُ، د سینګاپوُر، بینکاک او بېجینګ په ناکامه سفرو او ولخرڅې یې د ډیپارټمینټ پر همکارانو سربېره، د فابریکې څیني نور انډیوالان هم خبر وه.

پالبین اکا داسي واقعیتوُنه و ویل، چې یو ګړی مخکي زموږ ټولو څخه د هیچا په اروا کښې هم نه ګرزېدل. په دې خاطر نو ما هم په بې صبری سره و خپل رَوَن ته انتظار ایستئ. د شفیق جان د پال په باره کښې تر څو لنډو تبصرو وروسته، سمدلاسه د پالبین اکا د جدوَل و مخ ته کښېنستلم؛ او په بسم الله سره مي سپینه مکعب شکله فلزي مُهره د څو خانه یي جدوَل پر مخ و لغړوَله. پالبین اکا د هر چا د پال کتلوُ پر مهال د جدوَل په خانو کښې د مهرې و موقعیت ته په ډېر دقت نظر اچاوه؛ او تر یو و نیم مرموُزوُ محاسبو وروسته یې د هر چا د پال په تعبیر شرو کوله. ګرده په ټولوُ حواسوُ متوجه وُ، چې اوس به د پالبین اکا تر خولې څه را و وزي. پالبین اکا تر غاړې تازه کولوُ وروسته، په نسبتاً ژوندي ږغ داسي وویل:

– له څه وخت راهیسي هیڅ فکري او روحي اسقرار نه لرې. یوه روځ یوه نخشه، بله روځ بله نخشه او دریمه روځ بله نخشه جوړیې. انشاًالله څه موُده وروسته به دې زړَه پر پوُښتی سي؛ له پوهي او کتاب سره بې انتها مینه لرې؛ یو وخت دي حافظه هم خورا تېزه وه، خو اوس ډېره کمزورې سوې ده. والد صاحب دې ډېر نېک او عالم شخصیت دئ.

– حافظه مي طبعاً کمزورې سوې ده؛ خکه پخوا هم څوان وم؛ او هم له هري اندېښني څخه ببغمه وم. ما یې په خبرو کښې تر لوېدو وروسته و ویل.

– نه نه داسي نه ده. پخوا به دي يو پنډ کتاب يو وار کتئ؛ هر څه به دي په ياد وه، خو اوس د پخوا په پرتله په زور او جبر سره څه يادېږي؛ مور و پلار در څخه راضي دي. تل يې په زړه کښي گرزې؛ کوروالا دي ماشأالله پوه او هوښياره ښځه ده، همېشه وکيلانو غوندي خبري کيي؛ شايد شپږ – اووه مياشتي وروسته په يوه سفر ولاړ سې؛ او تر څه مؤدې وروسته مېرمن او کوچنيان هم در وغواړې ...

– د سفر خبره دي وکړه. ايا په پاکستان کښي چيري په سفر ځم، که تر پاکستان دباندي؟

– نه نه ډېر لوی سفر دئ؛ په خير و يورپ ته سفر کيي.

د دې جوملې په آروېدو سره ټولو همکارانو په يوه اواز ناري کړې: واوا هارون جانه! د بل خای سفر هم نه داورو پا سفر.

– دوا دي سه! رفيع جان د چټې پر را کولو سره زياته کړه.

تر دې خبرو وروسته مو د کورودانۍ او خدای پامانۍ په ويلو سره د «کريم ابات» لار واخيستله.

– هارون جانه! څه دي پکښي وويل؟ شفيق جان د پالبين اکا تر دوکان دباندي په داسي حال کښي پوښتنه کړه، چي رفيع الله او احمدشاه هم په ډېره تلوَسه خولې و سوال کولو ته جوړي کړي وې.

– هيڅکله مي تصوّر نه کاوه، چي ستورپوهان و کفشناسان و پالبينان به په دونه جزيياتو او دقت د چا د ژوند تېري او راتلونکي پېښي بيانولای سي.

– هارون جانه! د نورو پالبينانو په خبرو او کيسو پسي مه گرزه. د دغه پالبين خبره وکه! شفيق جان په نسبتاً جدي لهجه وويل.

– نوري خبري خو يې تر ډېره ځايه سهي وې. يوازنۍ خبره چي مې زړه ته نه لوېږي، د اوروپا د سفر خبره وه.

– د خدای بنده دا دونه خلگ خو خره نه دي، چي شپه او روځ و پالبينانو ته ور روان دئ. يو څه يې خامخا پکښي ليدلي دي. لس روپۍ دې د مور شيدې سي. زما په باره کښي خو يې ولا هر شی ريشتيا و ويل. رفيع الله په داسي حال کښي چي له ډېره تعجه يې سر په لاسو کښي نيولئ و، دا تبصره وکړه.

– هارون جانه! په نور څه مي سر نه خلاصيږي، خو دونه ويلای سم، چي دا پالبين چاچا هم له يو ځايه را تئ. شفيق جان تر يو لنډ سکوت وروسته و ويل.

– سړی بايد له حقه سترگي پټي نه کي. د ټولو په باره کښي ډېر شيان ريشتيا وه. احمدشاه هم په خپله تبصره کښي ځرگنده کړه.

مؤږ لا د يو و بل د پال په اړه په خبرو او تبصرو بوخت وؤ، چي د «کريم ابات» له گڼي گوڼي ډک چَوک را و رسېدئ. شفيق جان او احمدشاه سمدلاسه د «گلشن اقبال» و مازدا ته ور وختل، رفيع الله او زه هم تر ځو لنډو شېبو انتظار وروسته د «سوهراب گوټ» و يوه غوړازه، خو تش بس ته ور پورته سؤو.

کور ته له رسېدو سره سم مي د ماپښين پر چايو د ځان او همکارانو د پال داستانونه و مېرمني او اولادو ته بيان کړل. د نورو خبرو و سهي اټکل ته گرده هک اريان سول، خو دا خبره د چا زړه ته چندان نه لوېدله، چي مؤږ به په يوه اسانۍ له پاکستان څخه په وتلو بريالي سؤو.

شپې او روځي په چټکۍ سره تېري سوې، د پالبين اکا له اټکل سره سم، زه ريشتيا هم څو مياشتي وروسته د اوروپا په سفر رهي سوم؛ او څه کم يو نيم کال وروسته مي مېرمن او اولادونه هم په خير را و رسېدل. په دې ترتيب، هغه اټکل هم په سل کښي سل سهي او دقيق وختئ، چي زمؤږ په کوږنۍ کښي ټولو د شک او بې باورۍ په سترگه ورته کتل.

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د حاجي عبدالظاهر ځرک په نوم)

### پنځلسم لیک

ګران الحاج عبدالظاهر جانه!

السلام علیکم!

کورنۍ، خپلوانو او دوستانو ته دي هم زما سلام او احترام وړاندي کړه.

خدای تعالی دي د دوستانو سره ژوندی، روغ جوړ، خوښ خوشحاله او بریالی لره. زه خو په ځواني کي هم بې مضمونه وم. نو بې مضمونه چي زوړ سي خود به پروړ سي. اما دا چي زما خوریي اجمل جان ملا تړلې وه او تر اوږدې پردېسۍ وروسته ئې د سودا د قطع په هیله د سفر له پاره عزم جزم کړی وو د ټوله بې مضمونۍ سره سره مي و نه سوای کړای چي تا ته خط ولیکم، اما نو څه ولیکم؟

یو وخت البته د نادرخان په پاچهي کي یا د هغه د مړیني سره جوخت غلام فاروق خان کاکو په میمنه کي د ګمرک مدیر یا رئیس وګومارل سو. په هغو وختونو کي د دغه ډول مقاماتو له پاره د سواد کچه نه وه ټاکل سوې، لا زمه هم نه وه، میمنه هغه مهال له کندهاره څخه د مریخ تر سیارې هم لیري وه او کله چي به مسافر د هغه ځای د تلو نیت وکړ تر اوو قرآنو به ایستل کېدی او په ګډوو ګډوو اوبه به پسي پاشلي کېدې. یو له بله خبر په خط کي اخیستل کېدی. په خط کي تاریخ معتبر نه وو، یوازې مضمون ئې اهمیت درلود، تر اوږدې وقفې وروسته به پر یوه ځای د څو نورو اولادو د زوکړې او څو ودونو او ښادیو زېری، د څو نزدېکانو د مړو خواشینوونکې خبر سره یو ځای وچا ته رسېدی. بیا نو یا فلک تر بله خطه او بله مسافره پورې. په دغسي یوه فضا کي د میمنې د سفر له پاره یوه مسافر ډنډوره ګرځولې وه، خلګو نښې برابرولې، چا خطونه لیکل، چا له هغې خوا څخه فرمایشونه برابرول، په دغه ترځ کي د توخو د کورنۍ یو هلک هم ناست وو پلار یا اکا ئې ورته وویل چي ته دي هم خپل اکا یا ماما ته یو څه ولیکه. دا چي تا خط زده کړی دئ هغه به ډېر خوشحاله سي.

هلک نیمه تخته کاغذ راواخیست، پر ګوتو ئې راونغښت، کیڼه خوا ئې لوله غوندي کړله او هر دم به ئې د پاڼي پر لاندي برخه د ښي لاس خمچه ګوته، د میرزایانو په دود تېروله، وخت تېرېدی چایاني چښل کېدې، خو د غرمې پر مهال هغه چا چي د سفر نیت کړی وو، خطونه، نخښې او پیغامونه سره راټولول، چا پر هلک ږغ وکړ چي ستا خط خلاص سوی دئ که نه؟

هغه پر راږغ کړه چي آغا! از مال خالص ورته ولیکم!

از مال خالص نو بيا څه شي وو.

خط او کتابت خو خالص په فارسي وو او سواد حتی په کندهار کې لا هم د فارسيوانانو انحصار وو، د ليکلو له پاره يو څو مشخص مضامين وه، چې په يوه رساله کې به د مراسلاتو په نامه سره راغونډ سوي وه. سلام او دعا ... او له دې قبيله نو د از مال خالص په عبارت به حجت پيلېدی، چې د فلاني پر فلاني څو باندي دي او کله ئې ورکوي. دغه مطلب به په تجارتخانو کې و سوداګر بچه ګانو ته تر نورو مطالبو زيات ورښوول کېدی، ما به هم خورا ډېر از مال خالص ليکلی وي.

دا وخت نو از مال خالص د هغه هلک په نسبت د بې مضمونۍ نښه او دليل سوی وو. زه چي تر هغه لا بې مضمونه يم د هغه د بې مضمونۍ قصه مي درته وليکل او عجبه به لا دا وي که مي چيري مکرره درته ليکلې وه. نو بې مضمونې خو يوه نيمګړتيا ده او د هغې تکرار نو تر نيمګړتيا اوړي و قباحت ته رسېږي. که چيري مي مکرر درته ليکلی وي وبخښه او که فقط لومړنی بې مضموني وي دا نو د زړښت په عذر رامعاف کړه.

هغه پر ۲۱/ ۹/ ۲۰۰۴ چي مي تاسي ته خطونه ليکلي دي له هغې نېټې څخه تر اوسه مي بيا تور پر سپين نه دئ ليکلی، د دې خای په دنيا کي خطونه خورا ډېر دي، اما برقي خطونه دي. بر ښنا ليکونه دي، لاس نه په سترې کېږي، يوازي امضا پر لګوي، زه نو اوس هغه نه سم زده کولای، وخت مي تېر دئ.

پر ۱۴/ ۱۰/ ۲۰۰۴ تا تليفون راکړی وو، زما د خط د رسېدو اطمينان دي راکړ، هغه وخت لا سلطان محمد مرحوم ژوندی وو خو کله چي دي پر ۲/ ۱/ ۲۰۰۵ خبري وکړې د نورو پېښو تر اړخه دي د هغه مرحوم د مړيني هم راته وويل. ډېره مي خوا بده سوه. نه په دې چي هغه ولي مړ سو، هغه خو به مړ کېدی، که نن نه وو يا سبا، ځکه کل نفس ذائقة الموت - و کل من عليها فان. خوا مي د ځان سره بده سوه، چي د سعدي په فرموده:

گوسفندی برد اين گرگ مزور همه روز
گوســفندان دگر خيره در او می نگرند

سلطان محمد د داسي خواصو تښتن وو، چي په اوسنۍ زمانه کي که نايابه نه وي کميابه دي. رشتيا ئې ويل و هر چا ته، امانت ئې درلود، د لږ او ډېر تفاوت ئې پر امانت اغېزه نه درلوده، پر آشنايي ټينګ وو، مخلص انسان وو، دا صفتونه اوس لږ پيدا کېږي او زه ئې په خپله هم ارمانجن يم.

له يوې خوا مېلمانه راغلل، له بله لوري اجمل راروان دئ خط راڅخه غواړي، ما بايد ډېر وختي و دغه خط ته لاس وراچولی وای، خو د ژوند پای هم دغه ډول وي، چي له انسان څخه ډېر کارونه نيمګړي پاته سي، زه به اوس خط ختم کړم، او تا ته به ستا د سلام تاوان متوجه کړم.

۱/ هغه مځکه چي مالک ئې پر حاضر نه وي، يا ئې روزل په وس نه وي پوره، د هغې له پاره تر هر څه اجاره ښه ده، ما نعيم جان ته هم ليکلي دي چي د ځان په شان يو امين سړی پيدا کړي او مځکي د درو کالو له پاره په اجاره ورکړي. که ستا سره مخامخ سي ته هم لطفاً په دغه لار کي مرسته ورسره وکړه او مشوره ورکړه.

۲/ که امکان ولري يوه وړه جنتري يا راولېږه يا ئې اجمل ته ورکړه چي د ځان سره ئې راوړي.

۳/ تا ته مي ويلي وه که چيري عبدالمجيد درسره مخامخ سي هغه د حصر وراثت وثيقه چي يو وخت تا لطف کړی وو او د

عبدالکریم مرحوم د له پاره دي جوړه کړې وه و هغه ته ورکړه، که دي دا کار کړی وي کور دي ودان او که نه وي چې اجمل ته ئې ورکړې ښه به وي. ځکه هغه مخامخ پر دې خوا راځي.
/۴
وښنته سپین ستر ګي تاریکي غابښ کنداس
وادي نه خیست د دنیا له کاره لاس
واقعیت دغه ډول نه دئ، خو زما زوی عبدالصبور چې په ماسکو کي دئ د یوه اماتور سوداګر په شکل د تجارت هوس کوي او په دغه لار کي ئې کله کله پیسې هم ګټلي وي خو هغه څه چې ئې ګټلي وي هغه ئې ساتلي نه دي. کله یو چا کله بل چا ځني څټلي وي. خو دی بیا له سره منډه پیل کړي.
اوس ئې ما ته وویل چې که له کابل یا کندهاره څوک له روسیې څخه د تعمیراتو لرګو، یا سیخ ګول یا آهن چادر له پاره د ده په حساب کي (ال - سي) خلاصه کړي یا پیسې ورولېږي دی به دغه مالونه په امانت او مناسب کمېشن ورواستوي، ما ته خو نور څه معلوم نه دي، خو د ده د امانت تصدیق ضر ور کوم، که چیري د دغو شیانو شوقي تاجر در ملاو سي.

روغ او جوړ اوسې
هاتف
***

لیکوال: م. نسیم نوري:

## نهم نقل

وایي چې: مامون یو د یاقوتو غمی درلود، چې څلور ګوتي اوږد او درې ګوتي پسرور وو، نو ئې زرګر راوغوښت چې دا غمی په زرو کي راونیسه. زرګر غمی واخیست ولاړ، بله ورځ ئې زرګر راوغوښت. زرګر چې د ده حضور ته راغی مخ ژړ لړزېدی. خلیفه پوښتنه ځني وکړه چې څله رېږدې، ولي داسي هیبت دربادي پرېووت؟
زرګر عرض وکی چې زما د سر امان دي وي، هغه غمی ما په زرو کي ونیو او جوړ مي کړ، نابېره مي د لاسه ولوېد پر سندان وموښت څلور ټوکره مات سو، چې دغه دئ. خلیفه وخندل او داد ئې ورکی چې مه خپه کېږه، ستا بلا دي واخلي، لا ښه سو، ورسه څلوردانې ګوتمۍ ځني راجوړي که.

مثنوي

سـر د هـر کمال دئ حـلم
سر د هر جـمال دئ حـلم
چې یو کار له کاره تېر سو
په خـطا چې تېر و بېر سـو

څــه فــایده چې منتونه
یا کــوې پر چـا ظلمونه

تر ورځ تېرې او بـه وروره
نه راګـرزي په څــه زوره

ته حلـیم اوســه اې یاره
چا ته قار مه کـړه له واره

نــه بـه تــه یې په زحمت
هـــم پیدا به کې راحت
هم شیطان به کې نامراده
تــه و بل به سئ په ښــاده

پوهندوی آصف بهاند

# یوه کلیزه، دوې خاطرې

## د استاد پوهاند میرحسین شاه خان نویمه کلیزه

د لمانځلو او یادولو په برخه کې پخوا داسې دود وو، چې یوازې به د مړو لیکوالو، شاعرانو، استادانو، مشاهیرو او قلموالو له پاره غونډې جوړېدې، بیا د ځینو فرهنګیانو په نوښت، د اویایمې لسیزې په وروستیو کې داسې هم وشول چې د ژوندیو لمانځل او درناوی هم د یوه بدعت په ډول پیل شو. ښایي په کابل پوهنتون کې د استاد رشاد د اویایمې کلیزې جوړول او لمانځل ئې یوه غوره بېلګه وي.

او دا دئ اوس د نورو ژوندیو فرهنګي شخصیتونو د لمانځلو په لړ کې بیا هم په کابل پوهنتون کې د دانشمند استاد پوهاند میر حسین شاه نوویمه بختوره کلیزه، د ده د علمي لارې د ځایناستو، شاګردانو، ارادتمندانو او لارویانو له خوا د ۲۰۱۵ کال د نومبر پر ۲۱مه نیټه ولمانځل شوه.

پوهاند میر حسین شاه ښه استاد، ځیرک څېړونکی، دقیق ژباړن او د وخت د ادبیاتو او بشري علومو په پوهنځي کې د منځنیو پېړیو د تاریخ په تدریس کې غټه سته او د اعتبار وړ آدرس وو او په علمي دوایرو کې ښه اداره چې ثابت شوی دئ.

که چیرې د پوهاند میر حسین شاه اکادیمیک ژوند او اداري کار په دقیق ډول مطالعه شي، لیدل کېږي چې کومه وظیفه چې د خلکو، ټولنې او وطن له خوا ده ته سپارل شوې وه، هغه ئې په عالمانه، صادقانه او ربښتیني توګه د خپل تدریس، څېړنې، تالیف، ژباړې او اداري کار په ترڅ کې د یوه زړه سواندي استاد په توګه تر سره کړې ده.

زه مخامخ د شاګرد په توګه کله د استاد پوهاند میرحسین شاه لکچر ته په ټولګي کې نه یم ناست، خو په هغو کسانو کې شمېرل کېږم چې د ده له لیکلو علمي آثارو نه مې ډېره استفاده کړې ده او په سیمینارونو او کنفرانسونو کې ئې لکچرونو ته ناست یم.

دا مي له خپلو استادانو نه چي د ده مستقيم شاگردان ول، اوريدلي دي چي دی يو زړه سواندی عالم استاد وو. پوهاند مير حسين شاه ته د چا ژبه، ولايت، قوم، مذهب او نور تعلقات اصلاً مطرح او مهم نه ول، يوازيني شی چي ده به په نظر کي نيوی هغه د شاگر استعداد وو، په هر چا کي به ئې چي ډېر لږ استعداد هم وموند، هغه به ئې کار ته او لوړو زدکړو ته او د علم لاس ته راوړلو ته هڅاوه.

يوه ډېره ښه بېلگه ئې د کابل پوهنتون استاد نورمحمد غمجن وو. کله چي استاد غمجن موږ ته د ليسانس په دوره کي د حميد منتخبات او د روښانيانو د دورې متون تشريخ کول، داسي به مستند او په ډاډ سره غږېده لکه له هماغه ځای او پېښي نه چي راغلی وي.

نورمحمد غمجن تميل د لغمان نه راغلی يو ساده بې کسه، بې واسطې زلمی وو، چي پوهاند ميرحسين شاه خان هيڅ ډول سمتي، قومي، مذهبي تعلقات نه ورسره درلودل. حتی د دوی مورنۍ ژبه لا يوه نه وه، نورمحمد غمجن په قوم پشه اي او مورنۍ ژبه ئې هم پشه اي وه او استاد مير حسين شاه له کندهاره راغلی وو.

دا د استاد صابر خويشکي د خولې خبره ده: "کله چي استاد پوهاند ميرحسين شاه د نورمحمد غمجن استعداد، له علم سره مينه او زحمت ته وکتل هغه ئې هندوستان ته د لوړو زدکړو له پاره ولېږه".

د همدې زدکړو په پايله کي هغه استعداد چي پوهاند ميرحسين شاه په هغه کي ليدلی وو، غوټۍ ئې وکړې، وغوړېد او غمجن زدکړې پای ته ورسولې. کله چي غمجن له لوړو زدکړو راستون شو، د ادبياتو او بشري علومو پوهنځي په علمي کدر کي جذب شو او داسي استاد او ځېړونکی ور نه جوړ شو چي کم ساری وو.

د استاد پوهاند مير حسين شاه د علمي دريځ يوه بله خاطره چي شخصاً په ما پوري اړه لري او هيڅکله به مي هېره هم نه شي، د پوهنياري علمي رتبې ته د لوړېدو له پاره زما د علمي ترفيع له پاره زما پر وړاندي شوي اثر باندي د کابل پوهنتون په علمي شورا کي د پوهاند مير حسين شاه علمي دريځ وو.

کله چي زه د ۱۳۶۰کال په ژمي کي د کابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي په علمي کدر کي ومنل شوم، تر هغه وخته پوري مي له استاد پوهاند مير حسين شاه خان سره مخامخ پېژندگلوي لا نه وه شوې، خو د نه پېژندني په نړۍ کي ئې زما د يوه علمي اثر په برخه کې يو عالمانه او دلسوزانه برخورد کړی وو چي تر اوسه ئې هم زه د علمي احسان پوروړی يم.

د ۱۳۶۴ کال په نيمايي کي ما د پوهنياري علمي رتبې ته د لوړېدو له پاره خپل علمي اثر (شعر د پښتو کلاسيکو شاعرانو له نظره) د استاد پوهندوی جلالالدين کونړي تر لارښووني لاندي بشپړ کړ.

د کابل پوهنتون له علمي مقرراتو سره سم زما ليکلی تحقيقي اثر د څانگې له علمي مجلس نه وروسته د پوهنځي علمي شورا ته او بيا له هغه ځای نه د پوهنتون علمي شورا ته ولېږل شو. د کابل پوهنتون په علمي شورا کي زما پر علمي اثر باندي د بحث په لړ کي ځينو ښاغلو زما له علمي اثر سره چي اصلاً ئې له

مسلک سره د یوه خلي په اندازه ارتباط هم نه درلود، مخالفت کړی وو. مخکي له رای اخستلو نه پوهاند صاحب میر حسین شاه خان هغو ښاغلو ته په خطاب کي ویلي ول:

"پرته له شکه چي هر اثر د ښېګڼو تر څنګ خپلي نیمګړتیاوي هم لري چي دا تر بحث لاندي اثر هم له هغو مستثنی نه دئ، خو په همدې تېره غونډه کي مو داسي یوه اثر ته د پوهندويي ترفیع منظوره کړه چي له تر بحث لاندي اثر نه څو څلي ضعیف ارزیابي کېدای شو، ولي دا اثر چي نیمګړتیاوي ئې تر هغه اثر لږ او ناچیزه دي، د پوهنیارۍ مستحق نه ګڼئ؟"

د پوهاند صاحب میر حسین شاه خان دا علمي زړه سوی او روا داري نه یوازي پر ما، بلکي د وطن پر ډېرو بچیانو باندي شوې ده.

د استاد پوهاند میر حسین شاه خان نوویمه کلیزه دي بختوره وي. زه د استاد د علمي لاري د یوه لاروي او ارادتمند په توګه له ټولو هغو ښاغلو نه چي د داسې یوه علمي شخصیت د یادوني او کلیزي د لمانځلو تکل او هڅه ئې کړې ده، د زړه له کومي مننه کوم او استاد پوهاند میر حسین شاه خان ته اوږد پُر ثمره ژوند غواړم او هیله کوم چي د ژوندیو حقداره پوهانو او فرهنګیانو د لمانځلو دود عام شي.

***

لیکوال: م. نسیم نوري

## نه باید چي سړی په انتقام نفس خوشحاله کې

وايي چي: یو سړی وو، د باچا ډېر خپلوان ئې هم وژلي وه. د باچا حضور ته په خپله راغی. باچا ورته وویل چي آ سړیه! دا دونه ګناهونه چي دي کړي دي ته په کمه دلاوري په خپله رضا زما حضور ته راغلې؟ زما څخه نه بېربدلې؟

ده وویل چي پوهېږم زما ګناهونه بېخي ډېر دي، لیکن دا هم په یقین راته معلومه وه، چي ستا بخښښ او عفو تر ټولو لو او لوړه ده. نو ځکه ستا حضور ته راغلم.

شعر

که هر څـــه یم ګناهـــکاره
ســتا کرم له هر څه ډېر دئ
ســتا د لطـف و دریاب تـــه
هر بدکار له ما څخه هېر دئ

د باچا د ده دا خبره خورا خوښه سوله، او د ده خطاوي ئې ورو بخښلې علاوه ئې ښه انعام هم پسي ورکی. د باچا یو محرم پټ و. باچا ته وویل چي: دومره لوی مدعي په لاس درغی او هیڅ غچ او انتقام دي نه څني واخیست، د ده په خبرو خطاوتلې.

نظم

په ښېـــــتو کي دا مـــتل دئ
چي دا دوه به ســـره جوړ سي
که دریم په مـــنځ کي نه وي
د دریم په خوله دي پرور سي

باچا وویل داسي نه ده، لکه ته چي وایې، نو که زه له ده څخه انتقام واخلم زما نفس به خوشحاله سي او که عفو ورته وکم د ده زړه به خوشحاله سي، علاوه پر دغه به پاک خدای دنیوي و اخروي نېکنامي راکي.

فرد

د مـــومن زړه عرش الله آزار ئې مـــه کـــړه
چي تائب سو په غچ نفس خوشحاله مه کړه

عبدالظاهر ځرک

# د مکتب خاطرې

په (۱۳۴۳ هـ.ش.) کال کې پلار د مشرقي ښوونځي په لومړي صنف کې شامل کړم. تر دې دمخه زه او زما ورور ئې د کاکا سيداحمد ښوونځي ته ولېږلو د هغه ښوونځي اداري مور جواب کړلو نه يم خبر چې ولې؟ خو دونه مې په ياد دي، زما څخه چې د الفبا د تورو د بعضي تلفظو امتحان په تقريري ډول واخيستی زه د شپږو کالو وم سم تلفظ مې نه سوای ادا کولای.

مشرقي ښوونځی د کندهار په دوهمه ناحيه د شېرعلي خان په کوڅه کې موقعيت درلود . په کوچنيوالي کې د مشرقي په معنی مو نه پوهېدو او نه تر دوولسم صنف پوري د دې نوم په معنی او مفهوم مو پوهېدو. خو وروسته مو سر په خلاص سو چې دا نوم د کندهاري سردارانو ورونو يوه ورور سردار مهردل خان مشرقي ته منسوب دئ. د سردار پاينده محمد خان په زامنو کي پنځه ورونه چې د غلجی مور څخه ول لکه پردل خان، شېردل خان، کهندل خان او مهردل خان. په هغه وخت کې مشرقي ښوونځی په اوسنی دوهمه ناحيه د زينب د نجونو د مکتب څنګ ته وو. پر مخامخ ئې جامع هم د مهردل خان په نامه وه، چې اوس ئې خلک د نوراحمد اخندزاده جامع بولي.

مهردل خان مشرقي د سردار پاينده محمد خان زوی د علم، ادب او تصوف سره ئې زياته مينه درلوده او د فارسي ژبي ښه شاعر تېر سوی دئ. په (۱۲۷۱ هـ.ق.) کال وفات سوی او د کندهار د حضرت جي بابا په هديره کي ښخ دئ. د هغه وخت د کندهار شاعران او اديبان به پر ده راټول ول او د ده د شهرت سره هم چنداني جوړه نه وه. ځکه دی يو صوفي مزاجه سړی وو، لکه چي وايي:

شهره گشتن به جهان غير سياه روی نيست
"مهردل" کاش نامت زنگين برخيزد

مشرقي ښوونځی وروسته په لېسه واوښت او تر دوولسم ټولګی پوري هلکانو زدکړي پکښې کولې. دا لېسه اوس هم په کندهار کي سته او د ښکارپر دروازې د لمر لويدو خوا ته پر عمومي سړک موقعيت لري. ممکن اوسني شاګردان به اوس هم د "مشرقي" د نامه په مفهوم نه پوهېږي.

د مکتب په لومړي ټولګی کي کښېنستو. له معلمانو ځنې ډېر ښېرېدلو. زموږ د ديني علومو معلمان به اکثره د ښار مشهور ملايان ول، چي شهيد خطيب صاحب عبدالله اخندزاده په لومړي صنف کي زموږ ښوونکی وو. دی په کندهار کي په خطيب صاحب سره مشهوره وو او په عيدګاه کي د اخترو د لمونځو امامت د ده پر غاړه وو اوس هم د ده زامن د اختر د لمانځه امامت پر غاړه لري او د کندهار د شاه جامع سرپرستي او امامت هم د دوی دئ.

خطيب صاحب غالباً په (۱۳٦۳ هـ.ش.) کال د شاه جامع په محراب کي د عبادت پر مهال په اغلب ګومان د مجاهدينو د يوه قومندان له خوا ترور سو. هغه وخت د روسانو د تجاوز وخت وو. د روسانو او مجاهدينو جنګ ښه په شدت روان وو. ده خوارکي دا خبره کړې وه، چي دا د امريکا او شوروي جنګ دئ موږ بايد ځانونه پکښې برباد نه کړو، چي دا خبره پر مجاهدينو بده لګېدلې وه.

مرحوم خان عبدالغفار خان به هم عين خبره په خپلو بيانيو کي کوله، چي پښتانه بايد د روس او امريکا په جنګ کي ځانونه برباد نه کړي.

په اتم او نهم صنفونو کي مو د مرحوم قاري عبدالعزيز په نامه د قرآن شريف استاد درلودی، چي نوموړی هم د کندهار مشهور خطاط وو او کله کله به ئې د ليک او خط ښوونه هم راته کول. د عيدګاه دروازې د شيشک خط د ده په قلم ليکل سوی دئ.

يو بل استاد مو د مشاق سيدمحمد په نامه چي ډېر ښکلی خط ئې وو او د خرقې شريفي د احاطې د کاشيو خط د ده په قلم دئ او د بيتو او نورو ليکنو فرمايش زما د مرحوم پلار له خوا ورکول کېدی.

معلم صاحب چي به سهار په خپل وخت ټولګی ته راغلی د صنف کفتان به په زوره د "دقت" ناره وکړه ټول هلکان به د ښوونکي د احترام په خاطر ولاړ سول معلم صاحب به د کښېنئ ږغ وکی او هلکان به کښېنستل. د حاضرۍ کتاب به وختي کفتان د مکتب له ادارې ځنې راوړی وو، معلم صاحب به حاضري واخيسته د هر هلک نوم به ئې په زوره وايه هلکانو به د "صاحب" په زوره ږغ کاوه. د درس د شروع په وخت کي به ځينو معلمانو د پرون د درس پوښتني شروع کړې، د چا چي به درس نه وو زده معلم صاحب به په لښته پر لاسو وواهه چي ډېر سخت درد ئې درلودی. اکثره هلکانو به کرار-کرار ژړل. د ښوونکي له پاره د "ترقي تعليم" په نامه کتاب حتمي وو، چي هر معلم به خپل ويل سوی درس په هغه کتاب کي ليکی. که به ئې درس و نه وايه هلته به ئې وليکل چي پوښتني وسوې.

د اکثرو هلکانو له مکتب ځنې د تېښتي لامل دغه وهل او ټکول وه زموږ په وخت کي په

ښوونځيو کي د زده کوونکو له پاره دريشي حتمي وه، معلم چي به صنف ته راغلی اول به ئې دريشۍ وکتلې، که چا به نه وه اغوستې يا به تهديدی يا به له صنف څخه ايستل کېدی. د هلکانو نظافت ته هم ډېره توجه کېده، حتی لاسونه او نوکان هم کتل کېدل. کله کله به د واکسين ګروپ راغلی ټولو هلکانو ته به ئې ستنې ور ولګولې.

موږ ته په لومړيو صنفونو کي د معارف له خوا څخه کله کله کتابچې او مشوانۍ هم راکول کېدلې. په مشوانۍ کي به رنګ اچول کېدی او په نيي قلم به ليک نوشته کېدی، د کتابچې په آخره ورقه کي به د جاذب په نامه سپينه ورقه پرته وه، کم هلک چي به خط وليکی هغه به لوند وو په دغه جاذب به ئې وچاوه. هغه رنګ به ئې جذب کی، د تختو پر کوچنۍ تخته به هم په مېټ سره موږ خط ليکی. کله کله به د مکتب د شروع کېدو پر وخت د هر صنف مخ ته ټوله هلکان په لين درېدل او حاضري به اخيستل کېده، غير حاضر هلکان چي په پرون کي به نه ول راغلي د ټولو هلکانو مخ ته به ئې راوايستل او پښې به ئې ور پورته کړلې او ښه ټينګ لت به ئې ورکړ. البته که به کم هلک د مريضۍ او يا رخصت رقعه را استولې وه، هغه به خلاص وو.

يوه ورځ زه او زما ورور پلار په يو کار پسي لېږلي وو ماښام چي کورته راغلو پلار مي راته وايي نن مي عجيبه وليدل، څنګه؟

ول زه چي له کور څخه ناوخته ووتلم ستاسي د مکتب چپراسي يو خط راته ونيوی، ول حاجي صاحب دا دوه هلکان به ته نه پېژني؟ نن مکتب ته نه دي راغلي. په خط کي ستاسي نومان نوشته ول او د مکتب اداري ورکړي ول. ما ورته وويل چي دا زما زامن دي د رقعې وخت نه وو، چي ستاسي څخه ئې رخصت اخيستی وای نو مي اداري ته خط وليکی چي دا ما په يو کار پسي استولي دي. سهار چي موږ مکتب ته ورغلو ږغ ئې نه راته وکی.

د امتحانو په وخت کي نقل بند وو او د امتحان په صحنه کي به ليکل سوي وه چي "نقال مطلق ناکام دئ" بعضي نالايقه هلکانو به په ډېر زحمت نقل کاوه او مختلفي لاري به ئې ځان ته سنجولي وې. که به څوک پر نقل ونيول سو، پارچه به ځيني اخيستل کېدله. زموږ د مکتب مدير مرحوم محمدانور ايازی نومېدی، چي لوړي زدکړي ئې په امريکا کي کړي وې. د آزادۍ راډيو مشر اکبر ايازی د ده زوی دئ.

کله کله به درسي ساعتونه خالي ول، معلم به رخصت اخيستی وو هلکان به خوشاله ول او په ټولګی کي به ئې غالمغال جوړ کړی وو، چا به له ځانه سره سندري ويلې او پر خپل ږغ به ئې خوند اخيستی، بعضي هلکانو به په کتابچو کي "خانه بندي" کول چي يو رقم جالبه بازي وه.

د پرو سږ کال ناکامه هلکان به د صنف په آخره کي کېښېنستل، بعضي هلکان بيا د پايلوچانو او غلو په اړه زيات معلومات درلودل او د چاقو جنګونه به د ښار دباندي کله کله کېدل، دوی به د دغو پايلوچانو او غلو کيسې کولې او څو هلکانو به په خورا دلچسپۍ غوږ

ورته نیولی وو. بعضي هلکانو د هندي فلمو او اکترانو په باره کې زیات معلومات درلودل او په کندهار کې یوه سینما موجوده وه د اوسني جامع عمر پر ځای چې هندي فلمونه به پکښې چلېدل، چې بیا وروسته مجاهدینو وسوځله. د دغو فلمو کیسو هم څو هلکان جذب کړي ول. دا هغه وخت وو، چې ظاهرشاه پاچا وو او دیموکراسي ئې اعلان کړې وه. په معارف کې نوو جوړو سوو ګوندونو ډېر ژر سرایت وکړ، چې په هر صنف کې به د مختلفو ګوندونو نفر ول، چې اکثر وخت به ئې زیات جدي بحثونه کول او لفظي مشاجرې ته به ورسېدل زموږ په لېسه کې خلقیان ډېر ول او اکثره وخت به ئې مظاهرې او میټینګونه کول.

د ظاهرشاه دې دیموکراسۍ و معارف ته زیات نقص واړاوه او په ورځو ورځو به درس پاته وو ټول هلکان به مظاهرې ته ووتل او مکتب به رخصت سو. دولت باید د معارف څخه سیاست بند کړی وای. شخصي ښوونځی او لېسې په ټول کندهار کې نه وې. یو دوه یا درې د ګوتو په شمار د انګلیسي کورسونه ول پوهنتون خو بیخي بې له کابل پوهنتون څخه چا نه پېژندی.

په مکتب کې به کله کله کنفرانس، ډرام او کانسرټ هم اجراء کېدی. د کنفرانس رئیس په مکتب کې د انتخاباتو له لاري ټاکل کېدی، چې په دې کار کې خلقیان ډېر مخکي ول او د دوی نفر به د کنفرانس رئیس وو. کنفرانس به عموماً د ماپښین له خوا شروع کېدی وروسته ډرام چې ممثلینو به قسم قسم ننداري اجراء کولې او بیا به نو کنسرټ وو، چې د شپې تر ناوخته ئې دوام کاوه، په کنفرانس کې به هلکانو مقالې ویلې، چې خلقیانو خپل تبلیغات ډېر پکښې کول.

***

لیکوال: م. نسیم نوري

**د قهر خوړل تر هر څه خواږه دي**

وایي چې: یوه ورځ د حضرت امام حسین رضي الله عنه د عربو اشراف مېلمانه وه. د ها خوا د ده مریي د آش ډکه کاسه رااخیستې وه، خوني ته چې راغی پښه ئې په کمبله کې ښنده سوه، نوک ئې وواهه، کاسه ئې د ده مبارک پر سر ورچپه کړه او آش د ده مبارک پر مخ او ګرېوان توی سو. ده مبارک هسي مریي ته وکتل، مریي له وهمه ناري کړه چې:

"والکاظمین الغیظ و العافین عن الناس"

امام حسین رضي الله عنه ورته وویل چې عفو مي درته کړېده او علاوه پر دغه مي آزاد کړې یې او ستا د ټول عمر خرڅ هم پر ما دئ.

نظم

ثوک پېرزو لري و خپل ځان ته تاوان
چې په لوی لاس رسوي ځان له نقصان
یا به دی وي روادار د بل په قهر
چې کړي ده ته په سبب سره د زیان
چې سوه پېښه قهر نه دئ مناسب
چې سلیم عقل لري لا کړي احسان
قهر خوره، مدام همېش کړه شفقت
پښې بز په کور کښې مه سه په هیڅ شان
د خولې خوند به دې مدام وریاندې ښه وي
که په یاد کړې کاظمین له سپین قرآن
"نسیم" یادي کړې و تا ته دا خبري
نو اختیار لرې خپه سوې که شادان



- په ټولنیزه رسنۍ یا فیسبوک کې جنسي (غیر اخلاقي) څرګندوني، عکسونه او ویډیوګاني نشرول.
- د مقابل جنس په توګه اینټرنټي ای ډي کارول او بیا جنسي څرګندوني او غیراخلاقي بلني خلکو ته ورکول.
- د یوه نفر پرسر، شا، اوږو لاس تېرول یا موښل (موږل)، په څنګل وهل، ډکه ورکول، نوکاره ورلګول او یا بل ډول نامناسب تماس ورسره کول.
- یوه کس ته په دوامداره توګه د دباندي وتلو بلنه ورکول په داسي حال چې هغه څو واره دغه بلنه رد کړې وي.
- یو څوک و هغه کار ته مجبورول چې هغه په ناخوښه وي لکه مچه او جنسي اړیکي.

## د جنسي ځوروني مخنیوي له پاره باید څه وکړه سي؟

- تعلیمي، دولتي و نادولتي اداري او سازمانونه باید د جنسي ځوروني مخنیوي له پاره تګلاري جوړي او پر عملي کېدو ئې ټینګار وکړي او ورسره سم خپل ټول مامورین، استادان او شاګردان په وپوهوي.
- د اعلانونو او پوسټرونو په ذریعه عامه پوهاوی زیاتول.
- دولت باید د مرتکبینو له پاره د قانون په چوکاټ کي مجازات وټاکي.
- نجوني او هلکان باید وپوهول سي چې څه ډول عمل جنسي ځورونه بلل کېږي. دا هم باید ورته واضح کړه سي چې دا کار هیڅ د منلو او ګاللو وړ نه دئ او که چیري دا کار د دوی او یا کم بل چا سره کېږي، مشران باید په خبر کړل سئ.
- ځوانان تشویقول چې مودبانه اقدام او یا ږغ پورته کول خپل عادت وګرځوي.
- ځوانان پوهول چې دوی ته په درنه سترګه کتل د دوی اساسي حق دئ او دوی بیا مسئولیت لري چې د نورو درناوی وکړي.
- ځوانان متوجه کول چې د رسنۍ څخه په پوره اګاهي او احتیاط سره استفاده وکړي.
- ځوانانو ته زمینه برابرول چې خپل حدود د جنسي ځوروني په دایره کي وپېژني.
- غیر اخلاقي ټوکي او مسخرې نه خپله کول او نه هم د نورو هغې ورتائیدول او پر خندل.
- د جنسي ځوروني پر ضد پټه خوله نه نیول او نه هم ځان ګول اچول (صرف نظرول).
- کله چې یو څوک ستاسي مرستي ته اړتیا ولري، ځان مه ځني سپموئ، ټول بیان ته ئې په غور سره غوږ نیسئ او پر حللارو ورسره ږغېږئ.
- د خپلو اولادو سره صمیمانه او دوستانه اړیکه درلودل چې هغوی په ډاډه زړه سره خپل ورپېښ مشکل درسره شریک کړي.
- ځوانان د بې ستره او نامناسبو کالو له اغوستلو څخه منع کول.
- د هغو کسانو سره روابط نه ساتل چې دوی ورسره ځان ناارامه احساسوي او هغه کسان چې په اخلاقي فساد اخته وي ځان ليري کول.

جنسي ځناوران متاسفانه زموږ د ټولني په هره برخه کي دي. دوی صرف د دې موقع په تلاش کي وي چې چیري یو بې وسه، ببخولې او بېزبانه په لاس ورسي او دوی ئې د خپلو ناولو او شهواني خواهشاتو ښکار وګرځوي. فلهذا اوس هغه وخت رارسېدلی دئ چې د جنسي ځوروني ګاللو ته د پای ټکی کښېږدو او جنسي ځناوران پرې نه ږدو چې زموږ د نجونو او هلکانو خوږ ژوند ور تریخ او بېخونده کړي.

# Kandahar

**Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department**




## غزل

څه نیمګړې کارسازي ده، چې اسبابو ته نږه سي
که نصیب د سوبې نه وي، ماته زغره زولانه سي

زموږ د ځان بندي په غاړه، چیري وتښتو له ځانه؟
د بچاو امکان یې نسته، چې دښمنه یې سایه سي

د مرګ بېره د مرګ تبه، موږ ځانمرګي سودایان یو
د ژوند غم ژوندي وژلي، اجل هسي بهانه سي

د چرسیانو توکل جار سم، دم قدم الله مالک دئ
نه به دا شل ګون پوره سي، نه به جوړه ویرانه سي

ستا د سترګو و سینګار ته، ستا د زلفو و هر تار ته
کاشکي زما سترګي رانجه سي، کاشکي زما بانه شانه سي

د ښایست د شهرت ږغ یې، زموږ ګلی قصه خانه کړه
نن شهی پر بام ښکاره سي، سبا جوړه افسانه سي

یو میخوار درو شهید کړ، زوړ ساقي سوګند اوچت کړ

عبدالهادي ملا


چاپچاري: ملالی مطبعه